# ځرک



څوارلسم کال، دریمه، پرلپسې ۹۸یمه ګڼه،
حوت۱۳۹۵ل جمادی الثانیة۱۴۳۸هق، مارچ۲۰۱۷م

له امریکا سره امنیتي تړون افغانانو ته څه ورکړل؟



## کشتار غیر نظامیان افغان،
## ادامهء جنایتهای بشری امریکا

- دا سوله ده که دجګړې تودول!!؟
- د اسلامي امارت تجدیدي کارنامه
- دامریکایانو قهـــرمان!!
- د اشرف غني وروستی احمقانه ځرکندونې...



هغه عالم چې وفات یې دټول عالم مرګ دی
## اروابناد مولوي عبد الستار صدیقي رَحِمَهُ اللَّهُ



## شهید ملا عبدالسلام (تقبله الله)، مدبر ،صابر، متدین ،مطیع او دولس په حق کې خیرخوا اوخواخوږی شخصیت وو

## "الحاج مولوي جنت ګل"




علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

ځوارلسم کال، درېیمه، پرلپسې ۹۸مه ګڼه، حوت۱۳۹۵ل، جمادی الثانیة۱۴۳۸هق، مارچ۲۰۱۷م

**امتیاز :**

دا مـتیازخـاونـد : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسـؤل مدیــر : عبـید تنـویر

لـیکوال پـلاوی : ډاکټر صا بر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغـانسـتـان : | ۱۱۸۰ افغا نی |
| پـا کـسـتـان : | ۲٤۰ کلـداري |
| ا مـریـکـا : | ۶۰ ډالــره |
| ا رو پــــا : | ۶۰ یـــو رو |
| یـوه ګـڼـه : | ۱۵ افغـانی<br>۲۵ کلـداري |


**یادونه**

حـتمي نـه ده چې پـه ځـرک کـې خـپرې شـوې مقالې داداري دپـالـیسي ترجماني وکـړي هـره لیکنه دلـیکوال خــپل نــظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه


**پته :**

srak_111@yahoo.com


# لړلیک


| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | سرمقاله...................................................... | ۱ |
| ۲ | له امریکایانو سره امریکایي تړون افغانانو ته څه ... | ۲ |
| ۳ | د امریکایانو قهرمان!!........................................ | ٤ |
| ٤ | د اشرف غني وروستی احمقانه څرګندونې........... | ٦ |
| ۵ | افغان ژباړونکي دنهیلی په ګرداب کې.................... | ۸ |
| ٦ | ۲٤حوت؛ فریاد حق در برابر طوفان باطل................ | ۱۰ |
| ۷ | د شهیدې مورکی شهید بچی ډاکټرګل سلام......... | ۱۱ |
| ۸ | تاریخ پلورونکی ولسمشر!..................................... | ۱۳ |
| ۹ | کشتار غیر نظامیان افغان، ادامه جنایتهای بشري...... | ۱٤ |
| ۱۰ | د شهید ملا عبدالسلام بریالي ژوند ته کتنه............ | ۱۹ |
| ۱۱ | د ملکي وګړو وژنه بریا نه ده.............................. | ۲۷ |
| ۱۲ | اشرف غني دې لومړی د شریعت تلفظ زده کړي...... | ۲۸ |
| ۱۳ | اروابناد مولوي عبدالستار صدیقي.......................... | ۲۹ |
| ۱٤ | ملا عبدالسلام د عیاشانو او درویشانو دبېلتون سمبول | ۳۳ |
| ۱۵ | طالبان ولې نه ماتېږي............................................ | ۳٤ |
| ۱٦ | شهید ملا عبدالسلام.............................................. | ۳۵ |
| ۱۷ | امریکا اخر څه غواړي؟؟........................................ | ۳۷ |
| ۱۸ | کلکځونه............................................................ | ۳۸ |
| ۱۹ | بنام هشت مارچ.................................................. | ٤۰ |
| ۲۰ | د فکري سنګر ځوانانو بریمن یاست!........................ | ٤۱ |
| ۲۱ | یوه ورځ به رښتیا شي........................................ | ٤۲ |
| ۲۲ | د صلیبیانو لوی قاتل شهید حافظ بدرالدین ژوند ته کتنه. | ٤۷ |
| ۲۳ | د مخابراتو د کمیسیون مسئول محترم مولوي جنت ګل.... | ٤٦ |
| ۲٤ | خبر او ځرک....................................................... | ۵۰ |
| ۲۵ | نړیوال ستر دین!................................................... | ۵۵ |
| ۲٦ | د جنازو باندې بمباري هم د طالبانو غلطي ده؟!............. | ۵٤ |
| ۲۷ | منځني ختیځ کې نوی صف بندي دنویو خطرونو سره.... | ۵۵ |
| ۲۸ | د اسلامي امارت تجدیدي کارنامه............................ | ۵۹ |
| ۲۹ | په نوي نسل دغربي اشغال او میډیا اثر........................ | ٦۳ |
| ۳۰ | د یو امریکایي او طالب زنداني د تحقیق خاطره.............. | ٦٤ |
| ۳۱ | په برما کې تازه ستر دولتي وحشت........................... | ٦۵ |
| ۳۲ | د سیمکارت له لارې تعقیبیدل.................................. | ۸٦ |
| ۳۳ | راځئ چې نیالګي کېنوو!........................................ | ۷۲ |

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحيم

# د اسوله ده که دجګړي تودول !!؟

په داسې حال کې چې امريکايانو اومزدور رژيم يې دافغان ولس قتل عـام تـه زور ورکـړی ، جنـازي، جوماتونـه، قـومي مخـور ،ښـځي اوماشومان هدف ګرځوي اوپه همدي ورستيو دو اونيو کې يې نيږدي يونيم سل تنه بې دفاع افغانـان بمبـار اوپـه ډرون بريـدونوکې شـهيدان کړی ،ددې لپاره چې اذهان مشوش اواخلال کړي نوورسره يې هم مهاله دفريبکاري سولي ناري اوسوري هم تودی اوګرمي ساتلي!

دامريکايانودغليمانه ګټو اوناوليوسـتراتيژيوتطبيقونکي رژيـم مشر(اشرف غنـي) پـه دې سربيـره چـې دخپـل هيـواد دملي اواسـلامي حاکميت په روحيه اوجذبه دسنبالو افغانانو وژل اوله منځه وړل له خپلو مهمواهدافو بولي ورسره په هغو افغانانو هم رحـم اوزړه سـوی نلـري چې کومه ورځ يوه ګوله ډوډی مجاهد اوددې خاوري کوم اصلي وارث ته ورکړي

خوله بل لوري بياهرې خواته لاس اوپښې اچوي ځينو هيوادونـو تـه پـلاوي ليـږي اوداخـبره راپورتـه کـوي چـې دوئ لـه جګـړي سـتړی اوستومانه دي اوددې ليوالتيا لري چې مقابل لوري سره خبري اومذاکرات وکړي.

په دې ورستيو کې رسنيو داخبرونه خپاره کړل چې دکابل رژيم دبهرنيو چارو مرستيال وزير سعودي عربستان ته دسـفر پـه مهـال لـه نوموړي هيواده غوښتنه کړي چې داسلامي نړی دعالمانو اوديني پوهانو ديوې غونډې په جوړولوسره لاسپوځي رژيم وژغـوري او پـرخلاف يـې روان مقاومت په اصطلاح ناسم اوبې دليله معرفي کړي.

خوله بل لوري بيا درژيم دملي امنيت سلاکار هندوستان ته دسفرپه لړکې له نوموړی هيواده غواړي چې يواځې په مرسـتو ځـه نکيـږي هندوستان بايد خپل پوځيان افغانستان ته راوليږي ترڅوجګړه نوره توده اوپراخه وګرځي.

مونږ باورلرو چې کابل رژيم ته امريکايانو دادنده سپارلي چې په هرقيمت وي ترڅو دغه جګړه نوره ګرمه اوهراړخيـزه کـړي تـردي چـې سيمي اوچم ګاونډيانو ته وغځيږي اوامريکايان پکې خپل کبان ونيسي.

مونږ فکر کوو چې دسعودي عربستان په ګډون هره ناسته چې جوړيږي هدف اوستراتيژي يې هيڅکلـه دانـده چـې افغانسـتان کـې دي واقعي اودمجاهد ولس په خوښه سوله رامنځته شي ،بلکې دسولي هڅي يې هم جګړي ته کمپاين چلول اونورڅوکی ورکول دي .

دجګړي اصلي عامل خو امريکايي يرغل ،روان اشغال اوامريکايي منافعوته دوفدار رژيم منتځه راتلل دي، کچيري دغه عوامل اواسـباب له منځه ولاړل شي له شک پرته به جګړه دريږي او سوله به راځي، خوامريکايان او تاليځتي يې دخپلو زرګونو قووتونو اوجنګي ماشين په شـتون کې غواړي چې مجاهدين جګړه معطله اوالله مکړه وسله په ځمکه ورته کيږدي.

اوکه څوک دغه شيطاني شرايط نه مني نوهغه به ددوئ په اصطلاح متمرد ،ترهګر او سخت دريځي وي؟

خودکابل مکار رژيم بايد په دې خبره پوه وي چې دهغوئ هره هڅه دافغانستان دلوړو ګټو اوملي مصالحو په ضدده ،جګـړه اوسـوله مـو دواړه دخپلو بادارانو ترمنافعو او اوږدمهالو پلانونو پوري تړلي دی، دافغانستان اسلامي امارت ددې خـاوري اصـلي وارث اوددې ميړنـی ولـس دپاکو ارادو اوارزوګانو ممثل او ساتونکی ځواک دی ،ستاسې دهرې دسيسې اوجبر په مقابل کې به دمتعـال رب جَلَّجَلَالُهٗ پـه مـدد اودهمـدي ولس په مرسته ترهغو ولاړوي ترڅوموچې اشغال او وحشت پای ته نه وي رسيدلی اودموجوده دمفسد ،دارمار او افغـان دښـمنه اداري ځـاي سوچه اسلامي نظام اوحاکميت نه وي نيولی.




عبید تنویر

# له امریکا سره امنیتي تړون

# افغانانو ته څه ورکړل؟

روانو حالاتو او پېښو اوس دامریکاهغه صاحبنظران او کارپوهان هم په دې حقیقت معترف کړي چې یومهال یې له امریکاسره دامنیتي تړون منل یوطلایي چانس باله، خواوس وایې چې امریکایان هیڅکله دافغانستان خیراو اورامي نه غواړي اودامنیتي تړون لاسلیکول ورسره سراسر جبر اوتاریخي اشتباه وه.

دکابل په ځینو خصوصي تلویزونوکې له هغه ورسته چې دکابل اواسلام آباد ترمنځ اړیکي سختي ترینګلي اوویل کیږي چې پاکستان سوونه توپونه دافغانستان په ختیځ کونړ ویشتلی اوس دچارودډغوکارپوهانو ماغزه سد ته ورغلي او په ګردیومیزونواو مرکوکي وایی چې امریکاخو په امنیتي تړون کې دافغانستان دامنیت اوملي حاکمیت دساتني زمواري اخیستي وه اوس چې ګاونډیان په دومره جرات اوسپین سترګي دافغانستان داخلي قلمرو پایمالوي او عملیات کوي نوددوئ په خبره هغه امنیتي تړون لاسلیکېدل څه معنا لري اوکومه ګټه یې وکړه؟

دافغانستان اسلامي امارت په هغه مهال هم په واضحو ټکوویلي وو اواوس هم په همدې حقیقت باوري دی چې امریکادامنیتي تړون په منلواوتپلو هیڅکله داارزو نه لرله اونه یې لري چې ګواکي افغانستان ارام اوودان کړي، بلکې په همدې پلمه خپله هغه خاصه ستراتیژي پلي کول غواړي چې افغانستان به دخپلو استعماري موخو دترلاسه کولواو په سیمي د قبضې- ټینګولوپه خاطر دفشاردیوې مهمې زریعي په توګه استفاده ورنه کوي او داوږدي جګړي په میدان به یې اړوي اوبس.

که داسې نه وي افغانانو دتاریخ په اوږدو کې له خپلو ګاونډیانو اوهمجوارولسونو سره دومره اړیکي نه وي خرابي اوخړې پړې شوي لکه نن چې دامریکایانو دامنیتي تړون په سیوري اوحضورکې قرارلري.

اسلامي امارت دافغانستان، سیمي اونړی سوکالي او ثبات په دې خبره کې ویني چې ترڅو امریکا له افغانستان څخه وتلونه وي مجبورشوي اواشغال یې پایته نه وي رسولی دافغانستان په شمول به نه سیمه ارامي ووینې نه ګاونډیان اونه هم نوره نړی، بلکې دافغانستان دجګړي تاوونه او دبارودو لوګي به حتما دوئ ته وررسیږي او باالاخره به دهمدي جګړي ترخه څکي!!

نو عاجله او ضروري اړتیا داده چې نړي اوګاونډیان باید داسلامي امارت کلک ملاتړ ته راودانګي اوداسلام

اوبشریت دغه لوي غلیم اوطاغوت په ګډه مجبورکړي چې له سیمي کډه په شااوله ذهن څخه دنړي دتسخیر اوهضمولو خوبونه وباسي.

### د نبوي اخلاقو بېلګه:

یو ځل زموږ معشوق حضرت محمد المصطفیٰ صلی الله علیه وآله وسلم یو غلام ولید چې لاسونو یې په میچنه کې چې د غنمو د دانو په اوړه کولو بوخت وو او د میچنې د ګرځولو پر مهال یې ژړا کوله ، د دې کار په لیدلو سره پیغمبر اسلام محبوب سبحان صلی الله علیه وآله وسلم ډیر ناکراره شو او له غلام نه یې پوښتنه وکړه چې ولې ژاړې؟!

غلام په ځواب کې وویل : "زه ناروغه یم او دانې اوړه کولای نه شم ، ځما څښتن ډیر ظالم دی او که زه خپل کار سرته ونه رسوم هغه به مې ووهي" دا یې چې واورېدل، د الله تعالیٰ رسول محمد عربي صلی الله علیه وآله وسلم وروراندې شو پاتې دانې یې په خپلو مبارکو لاسونو اوړه کړې او غلام ته یې وویل : «کله هم چې دانې اوړه کوې، ما ته غږ کوه، زه به یې ستا لپاره اوړه کوم.«

دا زموږ د محبوب محمد المجتبیٰ صلی الله علیه وآله وسلم أخلاقي او د غمخوري بیلګه وه.



# غلام فطرته چارواکي

**ملنګ**

دکابل په او سنۍ برحاله اداره کې ګردسره چارواکي فطرتا غلامان پیدا شوي، که موږ ځیر شو او په خلاصو سترګو وګورو ، د کابل په دوسرې او ټیټ سرې اداره کې ټول هغه غلام چارواکي سره را ټول شوي چې خپل غلام فطرت یې د پردیو د زور زیاتي په وړاندې غبرګون ته نه هڅوي، بالعکس که د دنیا په هر کونج او کناره کې چې د اسلام په دښمنانو ځپونکی برید شوی، تر هر چا وړندې دوی غندلی چې ښه مثال یې په فرانس کې د چارلي ابدو په دفتر اتلوال برید او د دوی غبرګون دی.

موږ ولیدل چې دلته د کندز په بزکندهاري کې له خلکو ډک په لسګونو کورنه د امریکایانو په بمبار کې ویجاړ او اوسیدونکي یې له خاورو لاندې شول، په سنګین کې ښځې، ماشومان او بوډاګان په بارودو کې تور لوغړن وسوځیدل، سربیره پر دې په ګڼو ولایاتو لکه: لوګر، هلمند او اروزګان کې د کابل اداري نظامیان د امریکایي بریدونو خوراک شول او همداسې نور...

خو غلام فطرته چارواکو یې د غندلو لپاره لا څه چې د یادولو په پار یې هم له خولې سپېړ ونوت، که پرون یې د امریکې بریدونه غندلی وای نو نن به ولس هم طمع لرلی چې د پنجاب بریدونو ته به هم جواب ووائي، نور نو ولس په دې فطرتي غلامانو باور نه لري، اوس ولس د اسلامي نظام په خاطر د طالبانو د راتلو لارې څاري.

# دامریکایانو قهرمان!!

(بت شکن)

قهرماني یوداسې اعزاز دی، چې حکومتونه یا تحریکونه یې یوه داسې چاته ورکوي، چې هغه یوه داسې کارنامه یا میړانه وکړي، چې له مله یې دده مقام او منزلت وځلیږي او دخلکو ترمینځ یې درناوی ډیر شي، که دا ډول القاب نن سبا یو معمولي دود دی ،نو داسلام په مبارک دین کې هم قدامت لري او ډیري داسې پیښې شوي، چې له امله یې ځینې مسلمان فاتحان اومیړني دقهرمانۍ یا اتلولۍ په لقب تقدیر شوي ،دا کار یوه تشویقي جنبه یا اړخ لري او ددې لپاره کیږي، چې نور خلک هم داسې میړانې ته وهڅول شي اودده ستاینه او حوصله افزایي پرې وشي .

په صدراسلام کې هم داتلوالۍ یا میړانې القاب اتلانو ته کارول شوي، لکه پخپله حضرت رسول اکرم محمدصلی الله علیه وسلم ځینو صحابه کراموته داتلولۍ او قهرمانۍ القاب او الفاظ کارولې ،داحادیثوکتابونه ترې ډک دي، خو دبیلگې په توگه ترې څو را اخلم ، امام نسایي رح په (سنن کبری) کې هغه اوږد حدیث شریف رانقل کړی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله په غزوه کې دحضرت زید رض ،حضرت جعفر رض او حضرت عبدالله بن رواحه رض دشهادت خبر له منبره ورکړ،نو بیا یې وفرمایل : چې اوس دجنگ بیرغ خالدبن ولید رض په لاس کې پورته کړ،هو همداساعت یې ورته دعا وکړه او د(سیف الله )په لقب یې ملقب کړ،لکه دې حدیث شریف کې چې :...... ثم أخذ اللواء خالد بن الولید ولم یکن من الأمراء فرفع رسول الله - صلی الله علیه وسلم - ضبعیه وقال اللهم هو سیف من سیوفك فانتصر- به فیومئذ سمي خالد سیف الله /السنن الکبری للامام النسایي ج۸ص۱۸۱. دادی حضرت خالد رض ته داسلام پیغبر ض د الله ج دتورې لقب ورکړ، چې معمولا توره دقهرمانۍ څرگند مثال دی ،پدې توگه (مستدرک )په( حاکم) کې هغه حدیث رانقل کړی چې حضرت حمزه رض ته پکې دالله ج اودهغه درسول ص دزمري لقب ورکړل شوی، لکه دې حدیث کې چې فرمایي : أن رسول الله صلی الله علیه و سلم قال : والذي نفسي- بیده إنه لمکتوب عنده في السماء السابعة حمزة بن عبد المطلب أسد الله و رسوله صلی الله علیه و سلم /المستدرک للصحیحین للحاکم مع التعلیقات ج۴ص۳۱۷،

اوهمداسې امام سیوطي رح په جامع الصغیرکې داسې نقل کړي : ۳۸۷۵ - خالد بن الولید سیف من سیوف الله ، سله الله علی المشرکین ۳۸۷۷ - خالد بن الولید سیف الله ،وسیف رسوله . وحمزة أسد الله ، وأسد رسوله . وأبو عبیدة بن الجراح أمین الله ، وأمین رسوله . وحذیفة بن الیمان من أصفیاء الرحمن .وعبد الرحمن بن عوف من تجار الرحمن عز وجل ...دادی گورو چې پورتنو روایاتو کې حمزه رض ته دالله جل جلاله اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم دزمري ،خالدبن ولید رض ته دالله دتورې ،ابوعبیده بن جراح ته دامین ،حذیفه رض ته داصفیاءالرحمن په ډله کې دشمولیت اوعبدالرحمن بن عوف رض ته دتجارالرحمن دالقابو اعزازونه ورکړل شوي، همداسې نور ډیرې بیلگې یې هم شته .

ترهغې راوروسته داموبانو،عباسیانو اوعثماني خلافت په دورو کې هم داسې ډیر نړیوال فاتحان په اتلولۍ اتلان بلل شوي اودخپلو میړانو په وجه ورته داډول اعزازات یا مډالونه ورکړل شوي ،اوس په معاصره نړۍ کې همدا دود نافذ دی ،چې حکومتونه اوواکمنې اداري هغه پوځي جنرالانواوعسکري افسرانو ته داتلولۍ مډالونه ورکوي او پوځي ترفیعات یې هم لوړوي .

همداسې په سیاسي یا اجتماعي چارو کې چې کوم دولتي چارواکی یا کوم ملي سرلاری دپام وړ کارنامه وکړي، نو دده ستاینې او تقدیرلپاره ورته دهیوادونو مشران یا اړوندې اداري مډالونه ، انعامات او القاب ورکوي او هغه بیا ملي اتل یا قومي هیرو باندې ونازول شي ،خو له بده مرغه چې دافغانستان غمیزې دا هرڅه معکوس کړل او هرڅه سرچپه روان دي ،زمونږ په ټولنه کې هغه څوک ملي اتل ،شهید صلح ،شهید ملت ،شهید وطن ،باباوطن ،بابا ملت باندې ملقب کې کیږي ،چې خپل ملت یې وژلی او خپل قام یې چور کړی کړی وي ،چا چې زمونږ هیوادته خارجیان راوستي او داشغال ملاتړي دي، هماغه نن ملي قهرمانان او دوطن شهیدان دي او هغوئ ددې معنوي او مادي

حقوقوڅخه برخمن دي ،هغه چاچې ددې هيواداو ددې ملت او اسلام څخه ننگه کړي، هغوئ ته برعکس ترهگر!!او دپرديو غلامان ويل کيږي، خو هغه چا چې دتل لپاره دپرديو غلامي کړي ،دتل لپاره يې دبهرنيانو رسۍ غاړه کې پرته ده او تل يې دهيواد دتجزيي لپاره کله دخراسان کبير ،کله دفدرالي او غيرمرکزي دولتي اډانې دملي ميراث او اسلامي کلتور پرسر دخارجيانو سره سوداکړي، همدوئ له بده مرغه زمونږ دهيواد قهرمانان بلل شوي، ددې نه بدتره داچې ديرغلگروجنرالان ،ديپلوماتان او نور چارواکې دارگ والو لخوا وخت نا وخت دمحمد ايوب خان ،وزيرمحمد اکبر خان ،احمدشاه ابدالي ،ميرويس بابا او دهيواد دنوروميړونو په مډالونوستايل کيږي او ددوئ په نامه ورته مډال ورکول کيږي ،يوه انگريزته دوزيراکبرخان په نامه مډال په سينه ټومبل کيږي، پداسې حال کې چې دانگلستان سفير(مکناټن) دهمدې وزيراکبرخان په تفانچه وژل شوی او له مينځه تللی او دې ته ورته کارونه هغه دي، چې افغان ولس يې دبرداشت حوصله نوره نلري او نه يې په وړاندې خاموشي کولای شي .

له بده مرغه چې قهرماني په اصطلاح نن په پرمختللې نړۍ کې دسپو په شان نجس او کثيف حيوان ته هم ورکول کيږي، چې داپخپله دکفارو اواشغالگرو په بشپړ حماقت اوجهالت دلالت کوي ،دامريکايانو داگام چې هغه سپي ته چې افغانستان ته ددوئ له عسکرو سره راوړل شوی او بيا يې دمجاهدينو خلاف په جگړه ښه له مينځه تللې، دقهرمانۍ لقب ورکول دامريکايانوانساني حثيثت او بشري مقام ترجدي پوښتنې لاندې راولي ،خلک پوهيږي ،چې دوئ دا اقدام دکوم معقول او يانامعقول سياست په لامل وکړ،جوته خبره ده، چې په يوه اسلامي هيواد کې دداسې ناپاکه حيوان تقديرول، چې آن غوښه يې دنجاست په وجه حرامه اوملايک هغه کورته نه ورننوځي، چې کوم کور کې سپی وي ،خو بيا هم دداسې يوه هيوا د دمجاهدينو خلاف جنگيدلی سپی قهرمان اعلانول، ديوه رواني او نفسياتي جنگ سره مترادفه ده ،خلک پوهيږي، چې امريکايان کوم ناوړه عزايم لري او دمسلمانانوخلاف کومې ارادې لري .

د(لوکا)په نامه سپی قهرمان گڼل زمونږ غيرتي قوم ته زماپه آند يو چيلينج اوپيغور دی ،خوبولو ولسونوته دويښتابه پيغام دی، چې داشغالگرو دسيسي ډيرې مرموزې او ډيرې ژورې دي ،نړيوالو رسنيو کې دي خبرداسې انعکاس کړی : افغانستان ته د امريکايي ځواکونو له راتگ سره امريکايانو په ځانگړو مهارتونو روزل شوي سپي هم له ځان سره راوړل، چې د طالبانو په خلاف پوځي عملياتو کې ترې استفاده کوي.

امريکايانو دغه سپي د خپلو ځانونو د ساتنې، تلاشيو، د ماينونو پاکولو، د چاوديدونکو توکو او مخدره موادو کشفولو او په دښمن باندې د مخامخ بريد لپاره روزلي دي.

که څه هم امريکايان د ټولو هغه سپيو درناوی کوي چې له دوی سره يې په جگړه کې ستړياوې گاللي وي، خو د «لوکا» په نامه سپي يو له هغو څخه دی چې په امريکايي پوځ کې يې د «قهرمان» لقب گټلی.

لوکا په ۲۰۰۶ کال د امريکا په پوځ کې خدمت پيل کړ او په افغانستان سربېره يې عراق کې هم د امريکايي پوځيانو سره همکاري کړې او په ۴۰۰ گزمو او عملياتو کې يې ونډه اخيستې. دغه سپي په هلمند ولايت کې هم له امريکايانو سره په يوه سنگر کې وخت تير کړی.

له امريکا څخه خپرېدونکې (NJ Pet Community) ويب پاڼې ليکلي چې «لوکا» سپی تر يو زړور عسکر هم تکړه باتور دی او په افغانستان کې يې د طالبانو په خلاف جگړه کې د ميليونونو امريکايانو زړونه گټلي او بالآخره يې په دې لار کې خپله يوه پښه هم قرباني کړه.

د لويديځوالو رسنيو په وينا، د ۲۰۱۲ کال د مارچ په ۲۳مه د هلمند ولايت په نهرسراج ولسوالۍ کې امريکايي ځواکونه له لوکا سپي سره په گزمه بوخت وو، سپي دوه ځمکنې ماينونه په پرلپسې ډول کشف کړل. د امريکايي پوځ فرقه مشر- (وان راډيگز) وايي چې يوناڅاپه يې د چاودنې اواز تر غوږ شو او لوخړې پورته شوې.

د (Today) ويب پاڼې ليکلي چې کله نوموړي امريکايي عسکر دا کيسه کوله په سترگو کې يې اوښکې ډنډ وې او زياته يې کړه چې «له چاودنې وروسته مې په لوکا نظر ولگيد، مخکنۍ کيڼه پښه يې سخته ژوبله شوې وه، ژر مې په غير کې واخيست او لږ هاخوا مې د ونو په مينځ کې پښه ورپټۍ کړه». که څه هم د امريکايانو دغه قهرمان سپی بيا جرمني او له هغه ځايه کليفورنيا ته د علاج لپاره وليږدول شو خو پښه يې د خپلو امريکايي بادارانو څخه د دفاع په لار کې د ابد لپاره قطع شوه.

د نوموړي مشهور امريکايي سپي د قهرمانۍ غږ اوس د امريکا پولې نړولي او تېر کال د برتانيې لخوا هم په تر ټولو اوچت پوځي مډال (ويکتوريا صليب) باندې ونازول شو.

دد غه قهرمان سپي کارنامو په لويديځوالو رسنيو کې د تودو بحثونو موضوع گرمه ساتلې او د نيويارک ټايمز ورځپاڼې خبريالې (ماريا گوډويچ) يې په اړه د )بحري ځواکونو د قهرمان سپي داستان) تر سرليک لاندې ځانگړی کتاب هم ليکلی

نو :فاعتبرا يااولی الابصار!

# د اشرف غني وروستۍ

# احمقانه څرګندونې

بشیر ارمان

شاید افغانان پخپل تاریخ کې دومره په بل شخص نه وي تیروتي څومره (چې دغربي میډیا اور سنیو دتبلیغ نه په تأثر) په اشرف غني تیر وتل! او راتلونکی تاریخ به هم وښیي چې دغه پورې دافغانانود هیلو تړل څومره لویه تیروتنه اوخطاء وه...؟

داسلامیت او افغانیت دواړوپر ضد داشرف کړه وړه جوتوي چې نوموړی یواځې په نوم او رنګ افغان دی،په فکر، نظر،عادت او سوچ امریکائي دی، څومره چې په یو امریکایي تبع داسلام او افغانیت د دښمنۍ باور کیږي په همغومره معنی اشرف غني هم داسلامي او افغاني ارزښتونو ، زمونږ دخاورې او خلکو دښمن دی!!

څو ورځې وړاندې (۱۳۹۵ ل دکب په ۱٦مه) نوموړي کابل کې د ملي شورې په نوم دامریکایانو لاسپوڅې شورې دشپاړسمې دورې دنوي کاري کال پیلغونډې ته دکړې وینا : ( څو چې طالبان له جګړې لاس وانخلي امریکا به دولسي خلکو وژل نه بنده وي ) څخه هم دغه احساس او برداشت تقویه کیږي چې د افغانانو وژلو او ځورولو په اړه دامریکایانو لخوا روان وحشتونه، جنایتونه او ظلمونه پرځای ګڼي او تري په وازکومي ملاتړ کوي

هو!د غني له خولې د احمقانه ډول خبرو وتل کومه نوې د حیرانتیا اوتعجب وړپیښه نده،هغه دامریکایانو په غلامۍ او تابعدارۍ کې عار او شرم نه محسوسوي بلکې پرې ویاړي، تردې چې ځان امریکایانو ته دپوره امریکایې ښودو لپاره زمونږ په دیني او ملي اقدارو ملنډې وهي او ځان دهغو سره نابلد او نااشناء ښیي څو ښکاره کړې چې دفکر او زړه نه دامریکایانو تابعداردی

د ډېرو په اند: درواني حالت او کړنوې بریښي چې امریکایانوته پرلپسې ډاډ ورکولو هڅه کوي چې ستاسوسکنی او وفاداریم ، نه دکوم افغان په ویر اوغم خفه کیږم او نه ور سره دخواخوږۍ جذبه لرم، ستاسو بریدونه نه یواځې پر ځای او ضرروي بولم بلکې له امله یې مننه درنه کوم او دزیاتوالي غوښتنه یې کوم!

پورتني اندونه دشاعر خیالات ندي، که هر سړی ښه ځیر شي ، اشرف غني دهم داسې کرغیړن کردارنوم دی هغه شیبې هرافغان ته په زړه دي چې دولسمشرۍ لوړې په سبا یې له ځنډ پرته امریکایانو ته د تاریخي افغانستان خرڅولو قباله( امنیتي تړون) په لاس ور کړه د کوم له مخې: امریکایانو ته دافغان ټولوژني لپاره قانوني برائت په لاس ورغی یعنې امریکایان که یومخ افغان ولس له تیغه تیرکړي بیا هم څوک حق نلري چې دامریکایې قاتلانو دقضائي محکمې غوښتنه وکړي! باید افغان ولس په دې خبره سوچ او فکر وکړي چې دې ملعون او مردود انسانان د دوی له وینو سره څومره ستر خیانت او نه ښبنونکی جنایت کړی دی ؟

هره ورځ دامریکایانو لخوا په درجنو افغانانو په شهادت رسیدو له

املــه افغانـــان دامریکایـــانو دمحکمـــې غوښتنه نشي ـ کولی ، ځکـه دوی درایـو پـه مـټ ټاکـل شـوي ولسمشر ـ ( اشرف غني)ددوی وینې په امریکایانو پلورلي، دهر مقتول افغان ؛ قاتـل امریکـایي تـه یې قضائي مصؤنیت ورکـړی دی دغـه وجه ده چې له کله نـه دی ولسمشر ـ او ډبل عبد الله اجرائیه رئس ټاکل شـوي دګـوډاګي رژیـم لـه لـوري دامریکایـانو وحشتونه او ظلمونه غند ل بند شـوي او تري په ښکاره ملاتړ کوي...

بل جوته ده چې افغانستان کې اصل واک دچا سره دی؟ او دچا لخوا په افغـان ولس موجـوده وضعیت تپل شـوی؟ لـه شـک پرتـه امریکـا دخپـل وحشیانه ځواک په زور راغلې او هم پـه زور یـې اوسنـی دردونکـی حالـت پـه افغان ولس تحمیل کړی! کـه هرڅـوک پـه دې کـې شـک یـا تـردد لـري (چې افغانسـتان اشـغال نـدی)یا ځـان ورتـه ازاد او افغانســتان خپلــواک ښــکاري. دهغوی په پوهه او احساس ژاړه پکارده

دګــوډاګي دا منطــق (څــو چــې طالبــان لــه جګــړې لاس نــه اخــلي امریکابـه ولسي ـ خلـک وژني) پخپلـه ددې ښـکارندوی دی چـې افغانســتان اشغال او افغانـان دامریکـا......دي کـه څـو ک احسـاس لري؟ایـا امریکایـان دطالبانو پـه وړانـدې دشکست غـچ لـه عـامووګړو اخـلي؟ دولسي ـ خلکوپـه کورونــو بمونــه غورځــول ماشــومان ،



میرمنـې او سـپین ږیـري پـه شـهادت رسول دیمکراسي ده ؟

داشرف غني له څرګندونو بریښي چـې امریکایـانو د دوی پـه خوښـه او سلاټول وحشتونه او ظلمونه روان کـړي پکاردی افغان ولس دغفلت لـه خـوب بیـدار شي او ځـان قـانع کـړي چـې دامریکایـانو لخـوا پـه روانومرګونـو او جنـایتونو کـې اشرف غنـي او عبـد الله هغومره سهیم او ونډه لـري څـومره چـې امریکایان یې خپله لري

هم دانن چې دکب ۲۴مه نیټـه ده امریکـایي وحشـتګرو دهېواد سـوهیلي ولایت پکتیکـا ارګـون کـې پـه دره نـوم سیمه کې دجنازې پـه مراسـمو بمبـارې کړې له املـه یـې ۱۳ تنـه ولسي ـ خلـک شهیدان او ۵نورټپیان شوي

راځـو دیتـه چـې روانـې نـاخوالې دهغـه کرغیـړن امنیتـي تـړون ترخـې او بـدې پـایلې دي کـوم چـې اشرف غنـي لخــوا امریکــا سره لاســلیک شــوی دکتونکو پـه نظر کـه امریکـایې اشـغال هـم داسې دوام وکـړي افغـان ولـس بـه

ددینـه دزیـاتو زړه بوږنوونکـو منـاظرو شاهد وي

هـر چـې طالبـانو تـه دپـړې ګوتـه نیول دي ښکاره ده هغوی دافغان ولـس د دایمي نیکمرغـۍ او نجـات پـه موخـه مبارزه کـوي او پـه لـړ کـې یـې دتـاریخ خورا سترې قربـانۍ ورکـړې او لګیـادي دهېـواد لویشـت زمکـه یـې پـه امریکا یې یرغلګرو سـور تنـور ګرځـولې هـم یـې افغانسـتان کـې دامریکـا یـې اشـغال ددایمـي پایښـت ارزوګـانې او هیلې یې په سیند لاهو کړې

اشرف غــواړي ددې ســتر مــلي تاریخي مقاومت په اړه دولس ذهنیـت تغیرکړې چې که طالبان جګړه پـای تـه ورسوي امریکا به دولسي خلکـو وژل او ځورول پای ته ورسوي خو افغـان ملـت پـوهیږي چـې طالـب د دوی د دیــن، عقیــدې، نــاموس او مــلي ارزښــتونو مدافع دی، دافغانستان سپېڅلې خـاوره داستعمار له منګلـو ژغـورل غـواړي او د دوی د هیلوترجمان او ازادۍ علمبـردار دی

هغـه افغانـان چـې دامریکـا سره دطالـب پـه وړانـدې ولاړدي هغـوی ازاد ضـمیر نلـري او نـه هغـوی دافغانـانو مظلومانــه چیغــې اوري هغــوی هــم دامریکایانپـه وحشـتونو سـترګې پټـې کړې پای

# افغان ژباړونکي

(هڅانر)

## د نهیلۍ په ګرداب کې!!

په کابل کې دامریکا سفارت هغه افغان ژباړونکي له خپل کاري دفتره شړلي او امریکا ته یې ددوئ دورتګ او ویزو ورکولو نه اباء کړي، چې دا یوه نیمه لسیزه یې پدې مکافاتو ددوئ نوازش کاوه او دوئ ته یې ددې اساتتیاوه، چې که خپل هیواد کې یې شپه نه کیږي، نو امریکا او اروپا ته خو تللای شي ،نږدې (۱۰۰۰۰) لس زره افغان ترجمانان او دامریکایانو استخباراتي همکاران دسختې وراخطایي او مایوسۍ په ګرداب کې ولاړ دي، نه یوازې امریکا دوئ ته له ویزو ورکولو انکار کړی، بلکې بریتانیا ،ایټالیا او جرمني هم ددوئ برخلیک دقار و فار په درشل کې ودرولی ،دراپورونو له مخې په امریکا سربېره د برتانیې، کاناډا، جرمني او نورو هیوادونو له عسکرو سره همکار افغانان هم له ورته ستونزو څخه کړیږي او د خپل شپاړس کلن احسان په بدل کې داړوندو هیوادونو له چلند څخه شکایت کوي.

د تېر کال په مارچ میاشت کې برتانوۍ ورځپاڼې (ډیلي میل) خبر ورکړی و، چې هغه افغان ترجمانان چې په برتانیه کې یې پناه اخیستې، بیرته له دې هیواده شړل کیږي.

دغه راز د جرمني هیواد هم په ۲۰۱۵ کال کې د ورته پرېکړې په اعلانولو سره ویلي و، چې که افغان ترجمانان په خپلو کلیو کې د طالبانو له ډاره نه شي اوسیدلی، په پلازمینه او نورو خوندي ښارونو کې دې ژوند وکړي.

وړاندې افغان ژباړونکو په کابل کې د بهرنیو سفارتونو مخ ته لاریونونه کړي او شکایتونه یې کړي چې د بهرنیو ځواکونو لپاره یې خپل ژوند په خطر کې واچاوه، خو په مقابل کې یې بهرنیانو دوی په بدې ورځې او ناڅرګند برخلیک واړول. د امریکا پدې اقدام چې پر خپلو افغان همکارانو یې ویزې بندې کړې دي ،ددې هیواد د دیموکرات ګوند سناتورې (جین شاهین) په دې کار خواشیني ښودلې او په وینا یې له دې اقدام څخه داسې معلومیږي، چې امریکا په افغانستان کې له خپلو افغان همکارانو څخه تر استفادې وروسته لاس وینځي.

هغې په کانګرس غږ وکړ چې ژر تر ژره د امریکا د دې پالیسۍ مخنیوی وکړي.

نومورې سناتورې د (پناه غوښتونکو سره د مرستې نړیوالې پروژې) په حواله زیاته کړې چې په کابل کې د امریکا سفارت افغان ترجمانانو ته د ویزو د نه ورکړې دلیل دا ښودلی چې «د ویزو له کمبود سره مخ دي.»



سناتوره جین شاهین وایي چې زرګونو افغانانو خپل ځانونه او کورنۍ په خطر کې واچولې، تر څو امریکایان په افغانستان کې په ډاډمنه فضا کې ماموریت ترسره کړي. نو موږ ژیاتوي چې له دغو افغانانو سره د خوندي ژوند انه د برابرولو ژمنې شوې وې او که امریکایان یې په ترسره کولو کې وعده خلافي وکړي، نو له یوې خوا به د امریکایي ولس په تندې د شرم داغ وي او له بلې خوا به په افغانستان کې له امریکایي ځواکونو سره د همکارۍ کچه زیانمنه کړي.

له یر غلګرو سره دا افغان ژباړونکیو او استخباراتي همکارانو بر خلیک د (خسر الدنیا والاخرهٔ) مصداق شو ،الله ج هم تري ناراضه ،خپل ولس او قام هم تري ناراضه او خپلو بادارانو هم په ډاګ پریښودل ،ددې نه معلومیږي ،چې څوک د خپل دین ،ملت او خاورې سره خیانت وکړي او د پردیو اشغالګرو دناروا موخو لپاره د څورو پو په بدل کې د خیانت معامله وکړي، نو نتیجه به یې ددې ترجمانانو په شان وي ،دا خبره تجربو ښودلې، چې هیڅکله اجنبیان له چا سره په ژمنو وفا نکوي او نه یې ترپایه مرسته کوي ،ښکیلاک تل د خپلو عزایمو او اهدافو په لټه کې دلیوني سپي په شان خس وخاشاک ته لاس اچوي ،تر څو خپل شوم اغراض ترلاسه کړي ،چې کله یې هدفونه پوره شي، بیا نه خپل حاضرباش غلام پیژني او نه خپل ګرم صمیم او همیم دوست او همکار!

خو چاچې خپله عقیده او نظریه د مادیاتو په بدل کې وپلورله، هغه به د تل لپاره خپل ښتن او خپل ولس ته خجالت وي او چاچې د پردیو ددې دسیسې په وړاند مقابله وکړه، هغه به د تاریخ سرلوړی او هسکه غاړه به د تهولنې حلال خور بچی وي،افغان ترجمانانو او داشغالګرو جاسوسي همکارانو ،چې په سر کې یې امریکا دلازوال نعمت او تلپاتي اولو النعمت په نامه ګڼله، نن چې دامریکا کډې په بارېدو دي او هغوئ دلته د مجاهد ولس په مقابل کې ماتې خوړلې ،دوئ اوس حیران او ستړګې یې له اوښکو ډکې دي ، یوې خوا بلې خوامنډې وهي ،نه یې ملت کې داوسیدلو لویشت ځای شته او نه یې په سر حرام نمکې بادارا ن درحم وکرم لاس کش کوي، بلکې هغه قانوني ویزې چې نور خلکو ته یې ورکوي او لدوئ سره یې غوړې غوړې وعدې کړې هم پرې کړي ناڅاپه ودرولې !

اوس یې نه توبه قلبیږي او نه یې د خپل قام ضد خدمت ته تقدیرنامه ورکول کیږي ،نه یې ګرین کارډ شو او نه یې دپینټاګون شراب وکباب په برخه شو ،دا افغان ژباړونکیو او سنی حال چې نه یوازې دوئ ته پیغور او د شرم وړ دی ،په مجموع کې د ټول افغان غیرتمن قام په سپینه لمن تور داغ دی او هیڅکله به افغان مجاهد ملت دا سې ناخلفه بچې معاف نکړي او تل به یې په بې داغه او حریت پسنده تندې د پیغور تور داغ وي !

# ۲۴ حــوت؛ فــریاد حـــق
# در برابـــر طــوفان باطـل

ابوصهیب حقانی



۲۴۴ حوت هر سال، یادآور قیام مردمی مردم متدین هرات در مقابل تهاجم ارتش سرخ شوروی و رژیم اجیر و دست نشانده آن زمان است؛ سال ۱۳۵۷ هش با یک ۲۴ حوت ماندگار، افتخار آفرین، طاغوت لرزان و سراسر درس و شهامت و غیرت ملت استکبار ستیز افغان برای همیشه در تاریخ ما جاودانه است.

## چرا ۲۴ حوت هرات تاریخی شد؟

۲۴۴ حوت قیام مردمی ملت هرات که با جوی های خون و گلوله های آتش و خمپاره ایادی اجیر اداره وقت کابل و متجاوزین شوروی همراه بود؛ به این معنی هرگز نیست که دیگر شهرهای افغانستان از چنین حماسه های تاریخی بهره مند نگشته خیر، وجب وجب خاک افغانستان بوی سلحشوری میدهد و جای جای آن سرزمین، گواه دلاورمردان غیوری اند که جز الله سر سجده، تعظیم و تسلیمی در پیش هیچ حاکم طاغوتی فرود نیاورده و گاهی به معامله با اهریمن ننشسته اند.

لیکن آنچه ۲۴ حوت هراتی ها را ماندگار ساخت؛ آن بی نظیر بود طوریکه ملت هرات و ولسوالی ها و قرای اطراف آن؛ گویی آن روز همه صبح که بپا خواسته بودند لبیک شهادت را سر داده بودند؛ کفن پوشیده و گویی آخرین بوسه ها را بر پای و دست پدر مادرهای شان، بر رخسار نازنین فرزندان شان، بر سجده و سجاده و جای نمازها شان زده بودند؛ آن روز که از خانه های شان بیرون آمده بودند و گفتند مادرجان خداحافظ؛ یعنی دیدار به قیامت، و زمانیکه گفتند پسرجان و یا دخترم تو را به خدا سپردم یعنی من رفتم به سویی همان خدایی که تو را به او سپردم؛ فریادهای الله اکبر آن روز هراتیان بر گلوله و توپ و تانگ دشمنان خاک و تشنگان خون ملت افغانستان بلندتر بود؛ خون ها خون بر می انگیختند و شهداء، احیاء و زندگان را به سوی شهادت کشانده و موج های خون بوی عطر و گلاب می دادند؛ زمزمه «فزت و رب الکعبه» از پیروان صادق و راستین خلیفه راشد سیدنا علی رضی الله عنه به خوبی و وضاحت کامل شنفته می شد؛ اولاد و جگر گوشه های اهل اسلام آماده بودند تا آن روز به دین شان واقعا عمل کرده باشند.

## درسهایی از ۲۴ حوت:

۲۴ حوت نه یک اتفاق و یا یک حادثه زودگذر بلکه حماسه ای ماندگار از مکتب رشادت بود که برای همیشه انسان ساز واقع شده و حاوی درس های زیاد به نسل نسل افغانستان، ملت مومن و غیور ماست؛ از جمله:

ملت ها تا زمانیکه غیرت و شهامت داشته باشند تسلیم ذلت و خواری نمی شوند تا جاییکه شهادت در پای عزت را به مراتب برتر می دانند از زندگانی و عمر ذلیلانه در سایه سار اشغالگران و ایادی اجیر شان.

ملت ها تا زمانیکه خود قیام نکنند و سرنوشت خود را نخواهند تغییر دهند به حکم قرآن «ان الله لایغیر ما بقوم حتی یغیروا ما بانفسهم» محکوم سرنوشتی اند که انسان های بزدل و بی غیرت برای شان رقم زده یا کفار و دشمنان دین از فرسنگ ها فاصله برای آنها نسخه حیات می پیچند.

ملت ها با شهامت، رشادت، شجاعت، غیرت و شهادت زنده اند؛ کما اینکه کمتر روزهایی در سال آنقدر ماندگار و پرتاثیر اند مثلیکه ۲۴ حوت برای مردم قهرمان افغانستان خاطره انگیز و افتخار آفرین است.

## و اما امروز...

امروز نیز ملت مسلمان افغانستان در جای جای این سرزمین به قیامی همچون ۲۴ حوت ۱۳۵۷ هش در مقابل اداره اجیر کابل و حامیان اشغالگر بین المللی اش ضرورت دارند؛ و تنها با مشت های آهنین ملت با غیرت ماست که اگر گره شوند گلوی معامله گران، وطنفروشان و دین فروشان سخت فشرده شده و حق از دست رفته و عزت و مجد ملت مومن ما اعاده می گردد.

## وارثین ۲۴ حوت:

وارثین ۲۴۴ حوت هرگز آنهایی نیستند که از خون شهداء نان خورده برای خود عزت و آبروی زندگی فانی را ساخته و لاف رهبری آن قیام خودجوش و انقلابی را می زنند؛ بلکه وارثین برحق شهدای ۲۴ حوت کسانی اند که همینک راه و انقلاب آن شهداء را پیموده و همچنانکه شهدای حوت ۱۳۵۷ در مقابل تجاوز قشون سرخ شوروی جان های شیرین خود را فدای اسلام ناب محمدی صلی الله علیه وسلم کردند امروزه مردانه وار در مقابل (طاغوت عصر) امریکا و ایادی اجیرش در افغانستان مشغول نبرد و مبارزه می باشند.

یاد شهدای گلگون کفن ۲۴ حوت ۱۳۵۷ هش و تمام شهدای مظلوم این دیار گرامی، ارواح شان شاد و راه شان پر رهرو باد.

# د شهيدې موركۍ شهيد بچى ډاكټر ګل سلام

ليكوال نصيب ځدراڼ

**پېژندنه او د ژوند حالات يې:**

ډاكټر ګل سلام چې د شير عالم زوی و د پكتيا ولايت د ګردې څېرۍ ولسوالۍ په سوريخيلو كلي كې دې فاني نړۍ ته سترګې غړولې وې .

لومړنۍ زدكړې يې په خپل كلي كې وكړې او د ځوانۍ په درشل يې قدم په داسې حال كې كيښود چې د مسكو وحشي- لښكرو زموږ په وطن يرغل كړی و.

د ډېرو ځوانانو غوندې ګل سلام هم هر څه نيمګړې پرېښودل او د يرغلګرو څخه يې د خپل وطن د دفاع په لار كې هڅې پيل او مسلحه مبارزه شروع كړه . د پكتيا په مختلفو سيمو خصوصاً په ګرديز كې يې په ډېرو جنګونو كې برخه واخيسته او يو ځل په جنګ كې سخت زخمي هم شو.

د روسانو د ماتې نه وروسته خپل عادي ژوند ته راوګرځيد او تجارت يې پيل كړ.

**د امريكايانو په خلاف جهاد:**

كله چې امريكايانو پر افغانستان پوځي يرغل وكړ، د نظامي يرغل سره يو ځای يې په افغان مجاهد ولس پراخ فكري يرغل هم راوړ، د افغانانو هغه غيرت او زړورتيا چې د نړۍ مسلمانانو به افتخار وربانديې كاوه، تر ډېره حده را ټيټ كړ. د عصري ټيكنالوژي تبليغاتو خلك دومره وارخطا كړي وو چې د امريكايانو د مقابلې فكر خلكو پرېښود، ډېرو په خپلو ذهنونو كې ماته ومنله.

په داسې حال كې شهيد ډاكټر ګل سلام د خپلې ولسوالۍ د مجاهدينو د تداوي او د رهبرۍ كار په غاړه واخيست او د سيمې خلک يې امريكايانو ته د تسليمدو پر ځای د دوی په خلاف مسلح جهاد ته راوبلل .

ډاكټر ګل سلام سربيره پردې چې مسلكي ډاكټر نه و خو دا چې د مجاهدينو د تداوي خدمت به يې كاوه، له همدې امله په ډاكټر مشهور شو.

**د ډاكټر ګل سلام په كور د امريكايانو چاپه:**

ډاكټر ګل سلام چې د امريكايانو په خلاف د خپلې رغنده مبارزې له امله امريكايانو ته مطلوب شوی و نو هماغه و چې ده پسې يې كوښښ شروع كړ تر څو يې ژوندی ونيسي.

د ۲۰۰۷ د مني شپه وه، د شپې دولس بجې وې، فضاء كې د چورلكو شور شو، ورسره جيټ الوتكې هم راغلې، د سوريخيلو د كليوالو لپاره دا څه نوې خبره نه وه خو د شهيد ډاكټر د كورنۍ لپاره د امريكايانو چاپه د غم يو داسې زيری و چې د ډاكټر د كورنۍ راتلونكی ژوند يې بدل كړ.

نيمه شپه وه، د ډاكټر د كور دروازه امريكايانو ور ماته كړه او ور داخل شول، د ډاكټر څخه كشر ورور سيد عالم يې مخې ته ورغی تر څو د دوی سره په خبره ځان پوه كړي خو امريكايانو د وارخطايي له كبله ډزې پيل كړې او سيدعالم يې په دروازه كې وويشت او په شهادت يې ورساوه.

په ټول کلي په تیره بیا د ډاکټر په کور کې د وحشت او غم فضاء خپره شوه، امریکایان ورداخل شول د کور تالاشي یې پیل کړه کله چې د ډاکټر ګل سلام کوټې ته ورغلل، لاسونه یې شاته وربانديې وتړل او د وهلو پیل یې وربانديې وکړ.

د ډاکټر مور صبر ونشو کړی او په دومره کمو شیبو کې یې د یوه بچي د شهادت نه وروسته د بل بچي دا حال تحمل نکړ او داخلي عسکرو ته یې وویل چې امریکایان پوه کړئ چې زوی مې مریض دی، د معدې عملیات یې کړي، نور یې مه وهئ.

امریکایي عسکرو برعکس د شهید ډاکټر ګل سلام په سپین سرې مور باندې د ټوپک د کونداغونو، بوټونو، او سوکانو پیل وکړ او په ډیر وحشت سره یې دومره ووهله چې بیهوښه شوه.

له هغه وروسته یې ډاکټر ګل سلام او ورسره یو وراره د بندیانو په توګه له ځان سره بګرام ته یوړل.

سبا ته د کلي خلک راټول شول، د سید عالم د جنازې مراسم یې اداء کړل او خاورو ته یې وسپاره د کور دوه سرې بندیان و او یو شهید شوی و نو د شهید ډاکټر ګل سلام سپین سرې مور ته څوک دومره نشو خلاص چې روغتون ته یې یوسي .

کله چې خلک د جنازې څخه راستانه شول، د ډاکټر ګل سلام کور کې عجیبه د غم انځور جوړ شوی و، د سختو وهلو ټکولو او د بچیانو د غم د دروند بار د لاسه د ډاکټر مور هم له فاني دنیا څخه په همدا شپه وکوچیده او خپل روح یې خپل حقیقي مالک ته وسپاره.

**زندان څخه خلاصون او شهادت یې:**

یوولس میاشتې په زندان کې تیرولو نه وروسته ډاکټر صیب امریکایانو په داسې حال کې راخوشې کړ چې د سختو شکنجو او تعذیبونو له امله په ډیر کم وخت کې ریره سپینه شوې وه او سخت جسماني او ذهني مریض و.

دومره مشکلاتو د ډاکټر ګل سلام حوصله نه وه ماته کړې او نه یې د انګریزانو څخه د انتقام جذبه کمه شوې وه.

د پکتیا ولایت د ګردې خیرۍ، شواک او وزې ولسوالۍ په مختلفو سیمو کې به یې د مجاهدینو رهبري او د زخمیانو به یې لومړنی علاج او د تداوي کارونه هم کول، درې کاله یې همدا خدمتونه وکړل بالاخره امریکایانو د ډیر کوشش له امله د سوریخلو کلي د آدم تیګې په سیمه کې په داسې حال کې د یوې وحشیانه چاپې په دوران کې په شهادت ورساوه چې په یوه حجره کې له خپلو مجاهدینو ملګرو سره په ډوډۍ خوړولو بوخت و .

د ډاکټر صیب کورنی د امریکایي یرغلګرو په خلاف په سپېڅلي جهاد کې د شهداوو زرین باب لري.

د ده له کورنۍ څخه څلور تنه شهیدان شوي چې یو د ډاکټر صیب ورور، دوه وریرونه، او یوه یې سپین سرې شهیده مورکۍ هم شامله ده.

کله چې په ګران وطن کې اسلامي نظام راشي نو دا چې ډاکټر صیب د اتلانو په تاریخ کې زرین باب لري، د ټولو لپاره به د ویاړ او افتخار ځای وي .

بېشکه اسلامي امت د داسې اتلانو د احساناتو پوروړی ده.




افغانستان هغه هیواد دی چې د نوم په اورېدلو سره یې په کفارو د ویرې او ډار حالت راځي؛ او د بزدلی له خجالت کونکي صفت سره مخ کیږي؛ دا ځکه چې د افغانستان د مېړانې او غیرت تاریخ تر شا وجود لري؛ دلته چې هر ښکرور راغلی له ذلت او شرمندګی سره مخ شوی.

کفارو تل کوښښ کړی چې په دې اسلامي او غیرتي هیواد کې د خپلې مردارې ډیمکراسی نفوس وزېږوي او مسلمانان له خپلو اسلامي شعائرو بې برخې کړي؛ فحاشي او عریاني ته زمینه هواره کړي؛ او د بیارغونې په نوم په حق پرستو اشخاصو او مظلومو هیوادوالو خپلې اسلحې او بمونه تجربه کړي.

روسانو هم د شاه شجاع په واسطه دلته ډېر کوښښونه وکړل تر څو دا هیواد تر خپل ناوره دوامدار اشغال لاندې راولي او خپل شوم اهداف تر لاسه کړي خو دا ارمان یې له خاورو سره خاورې شو؛ او تر اوسه پورې د افغانستان د نوم په اورېدو ورته د بې اودسی مرض راځي؛ دا لاسته راوړنې یواځې د الله جل جلاله کامل نصرت او د غیرتي، مجاهدو افغانانو همت وو او بس.

هوکې!

امریکا او ورسره د ناټو غړي هیوادونه هم د کرزي او اشرف غني په واسطه په دې غیرتي هیواد د دوامدار اشغال سیوری خورول غواړي او خپله ناوره ډیمکراسي ترویجوي؛ خو دا ارمان به یې هیڅکله پوره نه شي ځکه دا هیواد با احساسه او په استقلال مین زلمي لري.

پرون شاه شجاع د تاریخ پلورونکی ؤ او نن اشرف غني؛ ځکه دواړه د یوه خره غوږونه دي صرف فرق یکې دا دی چې هغه د روسانو جوړه کړې پروسه پر مخ وړله او دی د امریکا؛ د بې غیرتي بې بالکل انداز نشته ځکه په ځای ددې چې د امریکایي ځواکونو ړندې بمباری وغندي خپل ولس ته ډاډ ورکړي دی بالعکس همدغو بمباریو ته زمینه سازي کوي او لا د پردیو په لاس د خپلو مظلومو هیوادوالو وینې تویوي.

اشرف غني په یو تازه بیان کې ویلي چې "طالبان دې جګړې پرېږدي امریکیان به ملکي خلک نه بمباروي"

نو په دواړو سترګو ړوند شې ستا له خبرې خو دا معلومیږي که طالبان جهاد پرې نږدي نو امریکیانو ته دا حق شته چې ملکي خلک بمبار کړي؛ لعنت شه لا په دې لعینې غلامی؛ اوس قضاوت تاسو وکړئ چې امریکا ولې په اول ځل بمباریانې کولې هلته یې ولې ملکي خلک په نښه کول طالبانو خو له دوی سره هیڅ جګړه نه وه کړې.

خو ملت هم اوس پوه شوی چې دا امریکي الاصله افغانی هیڅکله تاریخ ساتونکی نه دی بلکې تاریخ پلورونکي دی؛ ځکه تل یې په کنفرانسونو کې همدا خبرې کړي چې زه د نړیوالو د ګټو لپاره په افغانستان کې روانه جګړه پر مخ وړم تر څو نړی (کفري هیوادونو) د ترهګرو له شر څخه خلاص کړم؛ او هر بهرني کافر ته په سینه مډالونه ورټومبي تر څو یې په بدیل کې یو څو ډالره مادیاتو باندې ونازوي.



# کشتار غیر نظامیان افغان، ادامهٔ جنایتهای بشری امریکا

حبیبی سمنگانی

دریـن اواخـر ، شـاهد افـزایش تلفـات غیرنظامیـان افغان از سوی نیروهای اشغالگر و رژیم کابل در بخشهای مختلف کشور هستیم ، طیارات جنگی امریکا مردم ملکی را در مناطق مسکونی کورکورانه و بی رحمانه بمباران مـی کنند ، اماکن عمـومی را آماجِ سـلاح هـای ثقیـل بـه ویـژه گلولـه هـای سـنگین توپخانـه هـا قـرار مـی دهنـد ، ایـن واقعیت دیگر پنهان نمانده اسـت کـه نیروهـای وحشـی استعمارگران و اسـتثمارگران در سرزمـین آزادگـان دچـار شکسـت و هزیمت شده اند و حالا آنان می خواهند آتـش انتقام را که هر لحظه در سینه های آنان شعله می زند با کشـتارهای مـردم بیگنـاه و تخریـب شـهرها و قریـه هـا خاموش بسـازند ، آنـان بـرای ایـن هـدف شـوم گـاهی بـر هلمند ، گاهی بر فراه ، گاهی بر قندوز و............ در نیمـه های شب یورش می برند و غیرنظامیان را به شهادت مـی رسانند ، اگر بـه تـاریخ نگـاه بکنـیم ایـن تنهـا افغانسـتان نیست که آماج ظلم و ستم امریکایی هـای حیـوان صـفت قرار گرفته اند ، جنایت هـای دل خـراش امریکـای هـا در طی یک قرن بدون شـک بـرای همـه انسـان هـا المنـاک و شرم آور اسـت ، در سـطور ذیـل مشـت نمونـهٔ خـروار نگاهی می کنیم به چندی ازین جنایت ها .

**جنایات امریکا در جاپان ( ۱۹۴۵م ) :**

امریکا در جریان جنـگ جهـانی دوم در سـال ۱۹۴۵م مردم جاپان را در ظرف ۳ روز هدف دو بمب اتم قرار داد ، نخست بـه تـاریخ ۶ اگسـت شـهر هیروشـیما را توسـط < پسر کوچک > با خاک و خون یکسان ساخت و سـپس بـه تـاریخ ۹ اگسـت شـهر ناگـازاکی را توسـط < مـرد فربـه > نیست و نابود نمود ، پسر کوچک و مـرد فربـه نامهـای دو بمب اتم امریکا بود ، این دو بمب جانِ ۲۱۳۸۸۴ نفر را در ظرف چند روز گرفت ، حدود ۱۰۰ هزار نفر دیگـر تـا مـدت ۵ سال در اثر شعاع زهرآلود ایـن بمـب هـا جـان باختنـد ، حدود ۸۰ هزار ساختمان منهدم شد ، یا عمدتاً ویران شد و یا هم آتـش گرفـت ، دردآور اینسـت کـه رازهـای افشـا شده نشان می دهد که ایـن حمـلات بـر اسـاس ضرورت نظامی نبـود بلکـه بـرای مرعـوب سـاختن اتحـاد جماهیـر شوروی بود ، حتی مؤرخین می نویسـند کـه هـدف بمـب دوم اتمی در ابتداء شهر ناگازاکی نبود بلکـه شـهر کـوکرا بود ، اما چون شرایـط آب و هـوا بـرای هـواپیمای امریکـای مساعد نشـد تـا بـه کـوکرا بـرود ، هـواپیما مسـیر خـود را تغییر داد و شهر ناگازاکی را هدف گرفت ، این نشان مـی دهد که امریکا از روی کدام طـرح مشـخص مرکـز نظـامی

جاپان را هدف قرار نداده است بلکه مقصود امریکا تنها ارعابِ مخالفین خود بود « صرف نظر ازین که مردم کوکرا کشته می شوند یا مردم ناگازاکی » .

اما گمان هم نکنید که امریکا در مورد این فاجعه ابراز تاسف یا عذرخواهی کرده باشد ، هری ترومن « رییس جمهور آن زمان امریکا » این جنایت نا بخشودنی امریکا را بدون چون و چرا به عهده گرفت و اعلام نمود < اندکی پیش ، یک جنگنده، امریکایی یک بمب بر هیروشیما انداخت و افادیتِ این شهر را برای دشمن از بین برد ، آن چه انجام شده است بزرگ ترین دست آورد در تاریخ است > ، مؤرخین می نویسند هنوز تنها مدت چهار ماه از انتخاب ترومن به عنوان رییس جمهور امریکا گذشته بود که تصمیم گرفت تا از بمب اتم استفاده بکند ، وی همواره هشدار می داد « اگر یک بمب اتم منفجر شود چوبی برای من می شود تا قدرتم را برای روس ها نشان بدهم » ، ترومین یکبار در اثنای کنفرانس پوتسدام در ماه جون سال ۱۹۴۵م به استالین (رهبر حزب کمیونست شوروی) اخطار داده بود « ما سلاح جدیدی داریم » .

سال گذشته ، خانم کوابارا ( زن ۸۴ سالۀ جاپانی ) که در هنگام فاجعۀ خانمان سوز هیروشیما ۱۳ سال سن داشت خاطرات تلخ خود را چنین بیان نمود : هیچ هشداری از بمباران اعلان نشد ، من فکر می کردم طیارات جاپانی در هوا چرخ می زند ، آن زمان خوردسال بودم ، ایستاده بودم و به طیاره نگاه می کردم ، ناگهان دیدم بمب پایین افتاد ، همه جا ها پر از جسد شده بود ، مادرهای را می دیدم که دنبال فرزندان خود می گردند ، کودک های را دیدم که مادرهای شان را صدا می زدند ، اما دران لحظات مادری اگر فرزندی خود را می دید نمی شناخت ، اما بچه ها می توانستند مادرهای خود را بشناسند ، یک مادری را دیدم که شاخۀ کوچک را برداشته بود و با آن کرم ها و حشرات را از روی بدن طفل خود بر می داشت ، طفل فریاد می زد : درد دارد ، درد دارد ، اما مادر هم به کار خود ادامه می داد ، زیرا می دانست اگر این کار را نکند کرم ها بدن طفل اش را می خورند ، اما آن طفل زنده نماند ، خانم کوابارا می گوید : به دلیل این خاطرات هرگز نمی تواند باور بکند که جنگ پایان یافته است .

## جنایات امریکا در ویتنام ( ۱۹۶۵-۱۹۷۳م ) :

امریکا در دهه های شصت و هفتاد میلادی رسماً مشغول نبرد در ویتنام بود ، جنگ درمیان ویتنام شمالی و ویتنام جنوبی از ۱۹۵۵م تا ۱۹۷۵م برای ۲۰ سال ادامه داشت ، امریکا از آغاز درگیری ها با ویتنام جنوبی همکاری های اقتصادی و نظامی می نمود و بالمقابل چین و شوروی سابق ویتنام شمالی را تمویل و تجهیز می نمودند ، اما نیروهای امریکای در سال ۱۹۶۵م با ادعای بی اساس حمله به کشتی های امریکای در خلیج تونکن رسماً وارد خاک ویتنام شدند و تا هنگام فرار در سال ۱۹۷۳م شاهد جنگهای خونین و سنگین درین سرزمین بودند ، درین مدت هشت سال در مجموع بیش از دو و نیم ملیون نظامیان امریکای در ویتنام وظیفه انجام دادند ، در سال ۱۹۶۸م تعداد عساکر امریکایی در ویتنام به ۵۳۶ هزار نفر رسید ، قرار آمار رسمی بیش از ۵۸ هزار عسکر امریکای در ویتنام کشته شدند ، حدود ۷۵ هزار آنان معلول و تخمیناً سه صد هزار آنان زخم برداشتند ، تنها در سال ۱۹۶۸م حدود ۱۶۵۰۰ امریکای ها در ویتنام از بین رفتند .

در جنگ طولانی هر دو ویتنام در مجموع بر علاوه از نیروهای کشورهای ایتلافی تنها از ۱.۱ ملیون تا ۳.۸ ملیون ویتنامی ها جان باختند که نصف آن ها مردم های غیرنظامی بودند ، نیز حدود ۲ ملیون ویتنامی ها در جریان درگیری ها زخمی شدند ، طیارات امریکایی تنها تا

سال ۱۹۶۸م بیش از ۱۰۷ هزار حمله به خاک ویتنام شمالی انجام دادند و در مجموع حدود شش و نیم ملیون تُن بمب بر ویتنامی ها انداختند ، هواپیماهای امریکای بیش از ۸۰ ملیون لیتر مواد شیمیای و آتش زا را بر جنگل ها ، باغ ها و کشت زارهای ویتنام پاشیدند و نصف جنگل های ویتنام را ویران نمودند تا نیروهای ویتنام شمالی ازان استفادۀ جنگی نکنند .

به تاریخ ۱۶ مارچ ۱۹۶۸م ، ۵۰۰ تن غیر نظامیان ویتنام جنوبی که بیشتر آنان زنان و کودکان بودند از سوی نیروهای تجسسی امریکا کشته شدند و حتی اندام های قربانیان پارچه پارچه شده بود و با زنان به شکل گروهی تجاوز جنسی صورت گرفته بود ، این کشتار دسته جمعی در ساحات می لای ، می خه و سون می رخ داده بود و این واقعه به نام کشتار مای لای مشهور شد ، این واقعه تا مدت یکسال پنهان نگه داشته شد و بالاخره این ماجرا پس از شایعات گسترده توسط رسانه ها پخش شد و کسانی که درین جنایت دست داشتند در امریکا به دادگاه معرفی شدند ، اما دادگاه جز یک تن که فرمانده آنان بود و ستوان کالی نام داشت همه افراد متهم را به دلیل اینکه آنان مامور بودند و ماموریت خود را صادقانه انجام داده اند برائت داد ، ستوان کالی محکوم به حبس ابد با اعمال شاقه شد ، اما کالی دو روز پس از فرمان دادگاه به دستور شخصی رییس جمهور امریکا ریچارد نیکسون از زندان آزاد شد و سپس حدود سه سال را در زندان نظامی در جورجیا گذراند ، وی درین مدت اجازۀ دیدار غیر محدود با دوست دخترش را داشت ، پس از ۳ سال وی بخشیده شد .

**جنایت های امریکا در عراق ( ۲۰۰۳-۲۰۱۱م ) :**



امریکا در سال ۲۰۰۳م یکجا با نیروهای ۳۱ کشور به ویژه بریتانیا ، استریلیا ، ایتالیا ، هالند و........ به بهانه ای از بین بردن سلاح های هسته ای بر عراق یورش بردند ، راپور تحیقاتی مجلۀ پزشکی « لنست » نشان می دهد که ۶۰۰ هزار عراقی پس از هجوم امریکا بر عراق تا ماه جولای سال ۲۰۰۶م کشته شدند ، سایت ویکی لیکس با افشاگری های اسناد محرمانه ای نظامیان امریکا در سال ۲۰۱۰م از چندین واقعیت های تلخ پرده برداشت ، اسناد سایت ویکی لیکس نشان می دهد که ماه دسمبر سال ۲۰۰۶م خونبارترین ماه در عراق بود ، دران ماه ۵۱۸۳ تن کشته شدند که ۴ هزار آنان غیرنظامیان بودند ، در اسناد منتشر شده توسط ویکی لیکس همچنین گزارش های مختلفی دربارۀ شکنجه و آزار دادن زندانیان عراقی در زندان های این کشور توسط نیروهای امریکای به نشر رسیده است ، یکی از ۳۹۱۸۳۱ سندی که ویکی لیکس منتشر کرده ویدیوی است که نشان می دهد سربازان ارتش عراق یک زندانی را به خیابان می برند ، به روی زمین می اندازند و تیرباران می کنند ، مقام های امریکا در مورد انتشار این اسناد بسیار خشمگین شدند ، هیلاری کلینتون وزیر امور خارجه امریکا این عمل را چنین محکوم کرد « این اقدام سربازان و نیروهای را که در عراق فعالیت می کنند با خطر رو به رو می سازد و امنیت ملی امریکا و

امنیت کسانی را که با آن ها در عراق همکاری می کنند تهدید می کند » ، آندرس فوگ راسموسن فرمانده ناتو نیز تشویش خود را ابراز نمود < افشای این اسناد ممکن است نتایج امنیتی بسیار منفی داشته باشد > ، گویا همه رازهای که در مورد جنایت های بشری امریکا و رژیم مزدور در عراق منتشر شده است واقعیت دارد و لیکن از دیدگاه امریکا و ناتو نباید مردم جهان ازان آگاه شوند .

در یک گزارش تحقیقی مشترک چند سازمان بین المللی که تحت عنوان « شمارش اجساد : آمار قربانیان بعد از ده سال جنگ علیه ترور » به نشر رسیده است آمده است که در جنگ امریکا در عراق حدود یک ملیون تن عراقی کشته شده اند ، این گزارش خبر می دهد « این آمار تقریباً ده برابر بیشتر از چیزیست که مردم ، کارشناسان و تصمیم گیرندگان در مورد آگاهی دارند و یا توسط رسانه و این جی او های بزرگ تبلیغ می شوند » ، در عین حال درین گزارش از کوشش های مردم فریبانۀ مقامات امریکا و ناتو حرف زده است که چطور می کوشند جنگهای خود را بشر- دوستانه اعلام نموده میزان تلفات و فاجعه های بزرگ را پنهان نگهدارند ، چنانکه آندرس فوگ راسموسن رییس ناتو در رابطه به آغاز جنگ در لیبیا در سال ۲۰۱۱م گفته بود « نیروهای نظامی ما جلو یک کشتار عام را گرفتند و باعث نجات جان انسان های بی شمار گردیدند » ، اما واقعیت اینست که لیبیا تا به امروز در امواج خون غوطه می زند .



در عراق در کنار نیروهای ارتش امریکا ، تعدادی زیادی از افراد مسلح شرکت های امنیتی امریکای به ویژه بلیک واتر نیز از کشتار مردم عراق هیچ باکی نداشتند ، از ۲۰۰۵م تا ۲۰۰۷م عساکر بلیک واتر در ۱۹۵ واقعۀ تیر اندازی در عراق دخیل بوده اند که در ۱۶۳ مورد آن تیراندازی از سوی بلیک واتر آغاز گردیده است ، به تاریخ ۱۶ فروری ۲۰۰۵م نیروهای بلک واتر در حالی که از یک کاروان وزارت خارجه امریکا محافظت می کردند یک موتر عراقی را زیر آتش گرفتند ، نیروهای بلک واتر ادعا داشتند که از سوی آن موتر بر آن ها فیر صورت گرفت است ، اما تحقیقات نشان داد که یکی از مامورین بلک واتر به موتر خود شلیک کرده است ، اما جان فرس « سفیر امریکا در عراق » از مجازات این نیروهای بلیک واتر جلوگیری کردند تا مورال دیگران کاهش نیابد ، به تاریخ ۳۰ می ۲۰۰۷م ، نیروهای بلیک واتر یک غیرنظامی عراقی را به دلیل اینکه بیش از اندازه به کاروان وزارت امور خارجه امریکا نزدیک شده بود مورد هدف قرار داده از پا درآوردند .

یک دروغ شاخدار اینست که برای مردم جهان چنان جلوه داده می شود گویا مردم امریکا از رفتار و برخورد نیروهای خود در جهان مراقبت می کنند و از آمار واقعی تلفات غیرنظامیان که از سوی عساکر امریکای در کشورهای مستعمره رخ می دهد آگاهی دارند ، اما حقیقت اینست که امریکای ها هرگز باکی ندارند که چه تعداد مردم غیرنظامی هر شب و روز از سوی عساکر آنان هدف قرار می گیرند و جان می دهند ، در اوائل

سـال ۲۰۰۷م ، بخـش تحقیقات اسوشیتد پرس از امریکایی ها در مورد عراق پرسیدند که چه تعداد عراقی ها درین جنگ کشته شده اند ، حد اوسطِ پاسخ ها ۹۸۹۰ نفر بود ، گویا امریکایی ها به این باور بودند که تا هنوز تلفات مردم عراق به ده هزار تن نرسیده است ، در حالی که تعداد واقعی قربیانیان عراقی ها به صدها هزار نفر رسیده بود ، شاید مردم امریکا تنها راپورهای سازمان های همچون یوناما را مطالعه می کنند ، بلی افغان های بی گناه هر لحظه در هلمند ، فراه ، زابل ، میدان وردگ ، قندوز ، تخار و.... کشته می شوند و سازمان یوناما در اخیر سال ادعا می کند که امریکایی ها عامل تنها دو در صد تلفات ملکی اند ، یا للعجبا .

مارگارت تاچر « صدر اعظم سابق برتانیا » درست گفته بود : پس از فروپاشی شوروی حالا جنگ ما با مسلمان ها است .

## څو طبي نصیحتونه، لوستل یې ضروري دي!

۱. ګازي مشروبات لکه؛ پیپسي، کوکاکولا، ډیو او داسې نور... هډوکي او غاښونه کمزوري کوي، د زړه او ګُردو مرضونه پیداکوي، وزن زیاتوي، د شکر مرض پیداکوي، له زیات استعمال څخه یې ډډه وکړئ.
۲. زخم بغیر له پټۍ څخه خلاص پرېښودل یوه غلطي ده، سمه خبر دا ده چې، زخم صفا او بیا پټۍ شي چې ژر جوړ شي.
۳. په پوزه چې کله وینه راماته شي؛ نو سر په عادي حالت کې پرېښودل پکار دي، تر څو وینه په سالمه طریقه خارج شي.
٤. د ماشوم لپاره د طاقت دوایاني ضرر لري؛ ځکه دغه دوایاني د ماشوم په نبض کې سرعت پیداکوي او دغه سرعت کله د ماشوم د ناڅاپي مرګ سبب شي.
٥. د درد د کنټرول دوایاني (پیناډول، بروفین) قوت سامعه (د اورېدلو قوت) کمزوري کوي، په خاص ډول د بنځو.
٦. ګلپي: د ګلپي خوارک په بدن کې یو ډول کیمیاوي ماده خوروي (ضرري استروجین) چې د سرطان سبب ګرځي.
۷. شین چاي: په شین چاي کې داسې مواد دي چې، د سرطان مخنوی کوي.
۸. ماهي، مڼه، انګور، الوچه، توت بری، پالک، داسې خواراکونه دي چې، دماغ او د یادښت قوت زیاتوي.
۹. په غوږونو کې ډکي وهل اکثر د انسان د مرګ سبب ګرځي؛ ځکه دې سره د غوږونو پرده سوری کېږي او په دماغو کې التهابات (سوزخ) پیداکېږي.
۱۰. دا خبره غلطه ده چې، د خوراک په منځ کې اوبه څښل خېټه غټوي او هضم نه راځي؛ بلکې صحیح خبره دا ده چې، اوبه هیڅ ډول تکلیف نه پیداکوي، هره ورځ دېرش ۳۰۰ دقیقې پیاده مزل د زړه د مرض او د شکر مرض مخنوی کوي او هم د وینې د فشار مخنوی کوي، او کولیسټرول ختموي.
۱۱. اوړه او پالک: قوت مدافع په بدن کې زیاتوي او د سرطان مخنوی کوي.
۱۲. د ماشومانو لپاره د جاولې تېرول، زیاتره وخت د کولمو د بندیدو سبب ګرځي چې، د اپرېشن څخه بغیر یې بل علاج نه وي، هڅه وکړئ چې، ماشومان له ژاولو څخه لرې وساتئ.
۱۳. د خوب په وخت کې چې فعال (چالان) مبایل سر ته نژدې وي؛ نو شل سلنه ٪۲۰۰ د مازغو د سرطان سبب جوړېږي.
۱٤. د شپې لخوا چې ادرک په اوبو کې وجوشول شي او بیا وڅښل شي؛ نو کولیسټرول ختموي او ضرري غوړي له بدن څخه خارجوي.
۱٥. سهر په نهره یو ګلاس اوبه څښل د هغو ویټامینونو د کمي ځای نیسي چې، د خوب په دوران کې بدن ته نه دي رسېدلي او دغه شان د ضرري غوړو نه بدن صفا کوي.

# د شهید ملا عبدالسلام بریالي

## ژوند او کارنامو ته کتنه

قاري عبدالستار سعید

د ۱۳۹۵ هجري شمسي کال د حوت د میاشتې په اتمه نیټه داسلامي امارت یو لوړ رتبه او مهم جهادي مشر، او د کندز ولایت والي ملا عبدالسلام بریالی د امریکایي بې پیلوټه الوتکې په برید کې د شهادت لوړ مقام ته ورسېد.

ملا عبدالسلام ددې زماني یو له سترو جهادي شخصیتونو څخه و چې د خپل عمر ډېره برخه یې لومړی د فساد پر خلاف او وروسته د امریکایي یرغل په خلاف په جهاد کې صرف کړې وه. د نوموړي شهادت په پراخه کچه غبرگونونه درلودل، په دې سربیره چې اسلامي امارت یې د شهادت په مناسبت ځانگړې اعلامیه صادره کړه، په ټولنیزو رسنیو کې ډېرې مقالې او تعزیتي لیکنې یې په اړه نشر شوې او په ټول کندز سربیره یې په مختلفو سیمو کې فاتحې واخیستل شوې. دښمن د نوموړي د شهادت په اړه په لوړه کچه اظهارات وکړل،چې په دې لړ کې اشرف غني د حوت په نهمه د سرتیرو د ورځې نمانځغونډې ته په وینا کې د نوموړي یادونه وکړه او هغه یې د طالبانو یو مهم مشر وباله او وروسته د امریکایي یرغلگرو مشر جنرال نیکولسن هم په دې اړه اظهارات وکړل او د ملا عبدالسلام شهادت یې خپله یوه لویه لاسته راوړنه وبلله.

په راتلونکو کرښو کې د جهاد او مبارزې د لارې د دې نه سترې کیدونکي او اتل غازي په کارنامو باندې رڼا اچوو او د شهید ملا عبدالسلام اخند د شخصیت په اړه ناویلې خاطرې درته وړاندې کوو.

### شهید ملا عبدالسلام بریالی

ملا عبدالسلام د محمد سرور زوی په ۱۳۵۵ هجري شمسي کال کې د کندز ولایت د دشت ارچي ولسوالۍ په سرفراز تپه کلي کې په یوه غریبه او متدینه کورنۍ کې دنیا ته راغی.نوموړی لا د عمر په لومړیو کلونو کې چې په افغانستان د شوروي ښکیلاک لخوا یرغل وشو او په هیواد کې د جنگ اور ولگېد. د ملا عبدالسلام اخند کورنۍ هم د نورو ملیونونو افغانانو په شان د هجرت لار ونیوله،د هیواد له شمال کندز څخه بیا په جنوب کې د پاکستان تر سرحد پورې د هجرت د سختو پړاوونو له وهلو وروسته د دوی کورنۍ د بلوچستان د ځنگل پیرعلیزي په سیمه کې د مهاجرینو په یوه میشت غالي کې ځای پر ځای شوه.

ملا عبدالسلام اخند همدلته د هجرت په ماحول کې را ستر شو، ابتدایي عصري او ورپسې دیني زده کړې یې وکړې او د یوه ممتاز طالب په حیث یې د علم سفر ته ملا وتړله. خو لا یې د علم په حصول ارمان نه و ختلی چې په افغانستان کې د فساد او گډوډۍ پر ضد د طالبانو اسلامي تحریک پاڅون وکړ. ملا عبدالسلام اخند خپلې زده کړې په نیمایي پرېښودې او په

تانده ځواني کې چې ایله یې پر مخ د ږیرې آثار ښکاره شوي و د طالبانو له اسلامي تحریک سره وصل شو.

## د طالبانوپه اسلامي تحریک کې د فرد په حیث

مولوي محمد رحیم وایي: هغه وخت چې طالبانو کندهار او د هلمند مرکز لښکرګاه نیولې وه خو د هلمند د شمالي ولسوالیو موسی کلا او کجکې لپاره یې تشکیلات کول.په هماغه وخت کې مې په لومړي ځل ملا عبدالسلام ولید چې په کندهار کې له طالبانو سره په تشکیل کې و او بیا د هلمند موسی کلا ته لاړل.ملا عبدالسلام چې دا یې د ځواني لومړي کلونه وو د جهاد ډیر مینه وال نوموړي د داسلامي تحریک په جهادي تشکیلاتو کې د مولوي عبدالعلي صاحب په ډلګۍ کې و چې د هلمند له تصفیې وروسته میدان ښار، له هغه ځایه، دلوګر عینک ته لاړ، وروسته یې څه موده د کابل جنوب ته د ریشخورو په سیمه کې په جهادي لیکو کې وظیفه اجراء کړه او بیا د میدان ښار د کوه قرغ په علاقه کې تر هغه وخته په جهادي خدمت بوخت و چې کابل د اسلامي امارت د مجاهدینو په لاس فتحه شو.

د کابل له فتحې وروسته د دوی ډلګۍ لومړی د خیرخانې کوتل ته نږدې په شپاړسمه فرقه کې ځای پر ځای وه وروسته د د شمالي خطونو ته لاړل او ملا عبدالسلام هم ورسره همیشه د قره باغ او کلکان په دفاعي خطونو کې و. د شمالي د دوهم ځلي فتحې وروسته چې کله جبل السراج او ګلبهار ونیول شول او د طالبانو خط د پنجشیر په خوله دالان سنګ سیمه کې و، ملا عبدالسلام اخند هم همدلته جهادي وظیفه سرته رسوله چې همدلته په یوه سخته غرنۍ سیمه کې د جګړې په مهال ټپي او د علاج لپاره له سیمې انتقال شو.

له صحت یابي وروسته نوموړی یو ځل بیا د شمالي خط ته راغی او بیا چې کله د شمالي صفحاتو د عمومي فتحې په لړ کې د سمنګانو ولایت ونیول شو نوموړی له خپلو ملګرو سره سمنګان ته لاړ، د امریکا تر یرغل اته میاشتې وړاندې له سمنګان څخه دوی پلخمري ته تبدیل شول او بیا تر پایه همدلته و چې د جهادي نوبت تیرولو لپاره به د تخارو جنګي خطونو ته هم تلو.په پلخمري کې د وظیفې په مهال یې څه وخت د آمر کشف په حیث هم وظیفه ترسره کړه. ملا عبدالسلام اخند بیا تر هغه وخته په شمال کې و چې امریکایانو په افغانستان یرغل وکړ.

## د کندز محاصره او د شبرغان زندان

ملا عبدالسلام اخند هم د زرګونو نورو مجاهدینو سره د امریکایي یرغل په مهال په کندز کې محاصره شو، هغه وخت چې دوی له هرې خوا کلابند و او له پاسه وربانديې ظالمانه بمبار شروع و سخته امتحاني مرحله وه، د نوموړي ځینو ملګرو د شخصي رابطو له لارې له محاصرې د ځان ایستلو کوښښ وکړ او ده ته هم همداسې وویل شول. مګر ده به ویل زه څرنګه دا دومره د ډیر وخت ملګري او نابلده مهاجر مجاهدین همداسې یوازې پریږدم او د خپل ژوند بچ کولو هڅه وکړم. سره له دې چې کندز دده اصلي وطن و او په ډیره اسانۍ یې کولای شوای خپل ځان ددوستم له کانتینرو او زندان څخه بچ کړي، مګر ملا عبدالسلام په هماغو امتحاني شیبو کې د خپلو ملګرو سره وفا وپالله او یوازې یې هماغه لاره غوره کړه چې مجاهدینو وربانديې عمومي سلا او توافق کړی و.

ملا عبدالسلام د زرګونو مجاهدینو سره یوځای د یوه توافق له مخې د مزار په خوا روان شو، مګر غدار دوستم له دوی سره غدر وکړ، هغه ته د لارې ورکولو په ځای یې دوی په کانتینرونو کې واچول چې په دې کې زرګونو مجاهدین شهیدان او ملا عبدالسلام په داسې حال کې چې د کانتینر ډیری ملګري یې شهیدان شوي و په بې هوښه حالت کې له کانتینر څخه ژوندی را وایستل شو.

وروسته نوموړي اته میاشتې په شبرغان کې ددوستم په هغه زندان کې تېرې کړې چې د وحشت او ظلم له اړخه یو مثالي محبس بلل کیده،ملا محمد رحیم اخند چې دغه وخت

يې د نوموړي په راخلاصولو کې ډېرې هڅې کړې دي، وايي چې بالاخره مو ملا عبدالسلام اخند دپيسو په مقابل کې ددوستم له زندان څخه راخوشې کړو مګر کله چې له زندان څخه راووت ماته يې لومړۍ خبره دا وه چې ته خو دلته يو څه بلد شوی يې او د بنديانو د راخلاصولو درک در معلومېږي، دلته ډېر بېچاره مجاهدين بنديان دي زما مشوره دا ده چې ته همدلته پاته شه، زه ځم اوپه هره طريقه چې وي پيسې درته پيدا کوم او راليږم تر څو دا نور مجاهدين هم راخلاص شي.

## د امريکايانو په خلاف د جهاد بيا پيل

د شبرغان له محبس څخه له راخلاصيدو وروسته نوموړی د افغانستان جنوب ته لاړ،هلته يې څه موده په خپله پخوانۍ ډلګۍ کې فعاليت وکړ او وروسته د اسلامي امارت په تشکيل کې مستقله ډلګۍ ورته منظوره کړای شوه او خپله ملا عبدالسلام يې دمشر په حيث وټاکل شو.

په دې مرحله کې چې دکندهار په سپين بولدک، معروف او نورو سيمو کې د شهيد حافظ عبدالرحيم صاحب لخوا جهادي عمليات پيل شوي وو، ملا عبدالسلام هم ورسره جهادي عملياتو ته تلو، نوموړي په معروف، ارغسان او زابل سيمو کې په لومړنيو جهادي عملياتو کې شرکت وکړ او کله چې مجاهدينو د کندهارپه پنجوايي او ژړۍ کې عمليات پيل کړ هم نوموړی څو ځله پاشمول ته لاړ او په جهادي بريدونو کې يې برخه واخيسته.ملا عبدالسلام اخند چې د جهاد سخت شوق او جذبه يې درلوده او د کفري يرغل په مقابل کې مسلح جهاد يې خپله فريضه بلله،چې هر ځای به جهادي عمليات ګرم و ځان به يې ور رساوو په دې لړ کې نوموړي د شهيد قاري فيض محمد سجاد، شهيد ملا شهزاده اخند او ګڼو نورو جهادي قومندانانو سره د هيواد په جنوبي ولاياتو کې په عملياتو کې شرکت وکړ.

د ۲۰۰۴ ميلادي کال په وروستيو کې ملا عبدالسلام آخند د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د کندز ولايت د مرستيال په حيث وټاکل شو،نوموړی له يوه بل ملګري شهيد ملاجانان اخند سره کندزته لاړ، دا وخت په کندز کې د جهادي عملياتوکوم څرک نه و.دوی په علي اباد کې د ملاغازي کور ته ورغلل هغه ورسره ملګری شو او په پيل کې يې په کندز کې د مساجدو له امامانو سره ليدل کتل پيل کړل او خلک يې جهاد ته دعوت کړل. لږ موده وروسته ملا عبدالسلام د کندز ولايت د جهادي مسؤل په حيث تعين شو.

د ملا عبدالسلام ترمشرۍ لاندې په کندز کې لومړی خفيه جهادي کاروونه پيل شول،وروسته کرار کرار جهادي کارونه علني شول او د۲۰۰٦ ميلادي کال تر پايه پورې د کندز ټولو ولسواليو ته جهادي عمليات پراخ شوي وو،له دې وروسته په کندز کې پرلپسې جهادي وضعيت په کمي او کيف لحاظ دښه کيدو په حال کې و، اګر که ۲۰۰۷ م او ۲۰۰۸ م کلونه هم په کندز کې دجهادي برياوو له اړخه بې ساري وو ، خو په ۲۰۰۹ کال کې جهاد دورځنيو عملياتو له اړخه خورا مهم پيشرفت وکړ ، په دې کال کې يوازې دهغو راپورونو له مخې چې رسما نشر شوي دي مجاهدينو په کندز کې ۱۹٦ بيلابيل عمليات سرته ورسول ، چې په کورنيو سرتيرو سربيره يې بهرنيو جرمني عسکرو ته هم درنه مرګ ژوبله له ځان سره درلوده ، په دې کال له مهمو بريدونو څخه دالمان په چانسلره ( انګيلا مرکل ) او دفاع وزير باندې دمجاهدينو بريد و کله چې هغوی کندز ته دخپلو سرتيرو دليدو لپاره راغلي وو په دې بريد کې دغه دوه الماني مشران بچ شول خو الماني سرتيرو ته يې په ځاني زيان سربيره دښمن ته منفي رواني پايلې هم درلودلې .

د ۲۰۰۹ کال په پسرلي کې هغه مهال چې جرمني يرغلګرو عسکرو په چهاردره کې عمليات پيل کړي وو او ملا عبدالسلام اخند د مجاهدينو مشري په غاړه درلوده له الاماره ويب پاڼې سره په يوه مرکه کې يې د هغه مهال جهادي وضعيت داسې انځور کړی((په چاردره کې ۱۱ ګروپونه لرو چې په هرګروپ

کې له ۱۵بیا تر۲۰مجاهدین شته، دټولومجاهدینوشمېر له ۲۰۰ اوړي . داخوزمونږهغه مجاهدین دي چې هروخت ددښمن مقابلې ته آماده وي نوردعام اولس په منځ کې مونږ بیخي ډېر ملاتړي لروچې دضرورت په وخت کې ورباندې غږکولای شو. څوورځې وړاندې جرمني ځواکونه د لاسپوڅو پولیسو او اردو په ګډون چې نږدې ۱۰۰ ټانګونه اوپوځي وسایط ورسره وو،د عملیاتوپه موخه دچاردرې ولسوالۍ ته راغلل. دلته یوه لویه دښته ده په دې کې یې واړول مجاهدینوددې لپاره چې کلیوته یې دداخلېدومخه یې ونیسي. له وړاندې یې ورته کمینونه اوریموټ کنټرول ماینونه اماده کړي وو. جرمني یرغلګر لومړی دعین المجر سیمې ته راداخل شول چې مجاهدینو ورباندې برید وکړ په څوساعته جګړه کې ۳جرمني ټانګونه په راکټو ولګېدل اواوریې واخیست اوزیات شمېر سپاره سرتیري یې ووژل شول. په همدغه ورځ دوی دباسوسوپه خوا هم پیاده سرتیري رامارش کړل چې کلي ته دداخلېدو په وخت په نږدې باغچوکې دمجاهدینوپه کمین کې ولوېدل زمونږ ملګري کیسه کوي چې ۸ تنه جرمنیان یې ولیدل چې په لومړي برید کې دمرمیوخوراک شول. ددې ورځې په پای کې ددوی ټانګونودسجانیوپه خوامخه وکړه هلته هم مجاهدین ورته اماده وو دلته په جګړه او د ماینونوپه انفجارونوکې ددوی ۴ټانګونه له منځه لاړل اودسردروندزیان هم ورته واوښت.

د عملیاتو په دوهمه ورځ د چاردرې د سرک بالا په خوا دوی حرکت وکړ دلته دمیرشیخ په سیمه کې ددوی یوټانګ په ماین وخو ت چې سپاره سرتیري یې ووژل شول له دې پېښې شېبه وروسته دقریه فتاح په سیمه کې دوی دمجاهدینوله کمین سر ه مخامخ شول چې په سخته جګړه کې ددښمن ۲ټانګونه وویشتل شول بیایه میرشیخ کې ددوی بل ټانګ هم له منځه لاړ لنډه داچې په دې ۲ورځوکې دوی په پله پسې توګه دمجاهدینو تربریدونو لاندې وو چې په یادو ټولوپیښو کې ورته دسر درونډ زیان واوښت د دوی د مړو او ټپیانو د انتقال لپاره په بیابیاځرخکې راغلې په پای کې دوی اړشول چې دعملیاتوپای اعلان کړي اوبېرته دکندز دښارپه خوادخپلوقرارګاووپه خواوتښتېدل )

د همدې کال په وروستیو کې ملا عبدالسلام اخند پاکستان ته د سفر په مهال په اکوړه خټک کې د پاکستان د استخباراتي اداري لخوا ونیول شول او بیا په پېښور،کراچي او اسلام اباد کې څه کم څلورکاله بندي و. د زندان دا مرحله د نوموړي لپاره د صبر، مصیبت ګاللو او ریاضت یو طلایي مرحله وه، نوموړي به ویل چې د پاکستان په زندان کې یې صحیح البخاري،صحیح المسلم، سنن ترمذی، تفسیر ابن اکثیر او د البدایة و النهایه په شمول ګڼ نور کتابونه ټکي په ټکي مطالعه کړي دي. ملا عبدالسلام اخند که څه هم دیني سبقونه یې لږ ویلي و مګر د پراخې مطالعې او ذهانت له امله یې د ډېر ښه علم څښتن و.

## په کندزکې د مسؤلیت دوهمه مرحله

ملا عبدالسلام اخند چې کله له زندان څخه را خلاص شو لومړی لنډه موده د بلخ ولایت والي او د یوه معسکر د مسؤل په حیث مقرر شو مګر وروسته یو ځل بیا د کندز ولایت د والي په حیث وټاکل شو.

کندز دا مهال د حکومتي عسکرو او په خاص ډول اربکیانو تر تسلط لاندې و. مجاهدینو په اکثرو سیمو کې مخفي شتون درلود، په کلیو او ټولو اطرافي سیمو کې اربکیانو او ځایي ټوپکي ملیشو پوستې جوړې کړې وې. ملا عبدالسلام اخند په کندز ولایت کې ددوهم مسؤلیت له پیل سره سم د اربکیانو د ټغر ټولول دخپل مهم هدف په حیث وټاکل، نوموړي یو ځل بیا اولس په اعتماد کې واخیست،اولس چې اربکیانو ورباندې ډېر ظلمونه کړي وو یو ځل بیا یې مجاهدینو ته غیر خلاصه کړه او په دې توګه له کندز څخه د اربکیانو د جارو کولو لړۍ پیل شوه. په چهاردره، دشت ارچي، ګورتیپه، امام صاحب او نورو سیمو کې مجاهدینو په مسلسلو عملیاتو

کې داربکیانو سلګونه پوستې له منځه یووړې او ددښمن ددغې شیطاني طرحې ټغر یې ټول کړ، د یوه کال په موده کې د کندز نظامي وضعیت یو ځل بیا هغه حال ته راغی چې د ملا عبدالسلام اخند د نیول کیدو په وخت کې و، اطرافي کلي او د ښار مضافات د اربکیانو له شتون څخه تصفیه شول.

په دې مرحله کې د دښمن ملیشې نه یوازې د وسلې په زور له سیمې وشړل شوې بلکې ډیری یې د دعوت له لارې تسلیم هم شوې.له ملیشو د سیمو له ازادولو وروسته د ملا عبدالسلام اخند په ابتکار په ټولو تر لاس لاندې سیمو کې یوه معیاري امارتي اداره رامنځته شوه، د دیني او عصري زدکړو مراکز فعال شول، محاکم او حکومتي مراجع د اولس د ستونزو په حلولو بوخت شول،د مجاهدینو د تربیې لپاره ځانګړي معسکرات پرانیستل شول تر دې چې د بیارغونې اود هیواد د ابادۍ کارونه هم پیل شول. کندز چې د قومي تنوع له امله ورته کوچنی افغانستان ویل کیږي ملا عبدالسلام اخند په کې داسې په درایت سره خپل مسؤلیت ترسره کړ چې د ټولو قومونو او قشرونو په منځ کې یې زیات محبوبیت وموند او نوموړي ته یې د یوه عادل حاکم په حیث ډیر احترام درلود.په کندز ولایت کې د ملا عبدالسلام اخند د مسؤلیت په دوهمه مرحله کې ډیر فتوحات هم وشول چې په دې لړ کې دوه ځلې د چهاردرې مرکز،دوه ځله د قعله زال ولسوالۍ مرکز،یو یو ځل خان اباد، دشت ارچي او د امام ولسوالۍ مراکز او دوه ځله د کندز مرکزي ښار دمجاهدینو په لاس فتحه شو.

**دکندز فاتح**

د ۲۰۱۵ میلادي کال د سبتمبر د میاشتې په وروستیو کې هغه مهال چې د اسلامي امارت د مؤسس امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات د خبر له اعلان او د نوي امیر شهید ملا اخترمحمد منصور د ټاکل کیدو لړ وخت وتلی و. مجاهدین په غیرنورمال حالت کې و. له یوې خوا د مرحوم ملاصاحب د وفات غم او له بلې خوا د ځینو اختلافاتو او نارضایتونو راپورته کیدلو د مجاهدینو اذهان مغشوش کړي وو. په همدې مهال ملا عبدالسلام اخند د کندز د مرکزي ښار د نیولو لپاره عزم وکړ.

د نوموړي یو نږدې ملګری ملا حمزه وایي: ملا عبدالسلام آخند په هغه خاص وخت کې د کندز ښار له نیولو څخه خاص اغراض درلودل، هغه دا چې مجاهدین به له مایوسۍ را ووځي او د فتحې په خوښیو به یې روحیات لوړ شي، د اختلافاتو خبرې به پریږدي او د فتحې بحثونه به پیل شي،ددښمن تبلیغاتي رُخ به بدل شي،د کندز په محبس کې پراته زندانیان به را ازاد شي، دښمن ته به دا وښودل شي چې ولایتي مرکزونه هم د ولسوالیو د مراکزو په شان نیول کیدای شي او دا به ددښمن د عسکرو مورال وځپي، دښمن به مجبور شي چې له اطرافو خپل عسکر ټول او توجه په ولایتي مراکزو را ټوله کړي.

نوموړي څو ځله نظامي کمیسیون ته خپل پلان وړاندې کړ، چې وروسته د اسلامي امارت د زعیم ملا اختر محمد منصور صاحب په تأیید دکندز د فتحې پلان نهایي شو. خبره یې په ډیره رازدارۍ وساتله تردې چې په ټاکلې نیټه یې د کندز په مرکز له څو خواوو برید وکړ.

ملا همایون وایي چې ملا عبدالسلام اخند د عملیاتو د پیل په شپه تر سهاره په نوافلو او دعاء ګانو بوخت و، کله چې عملیات پیل شوه نوموړي له خپل ځانګړي مرکز څخه د دوو تیلفونونو او یوې لویې مخابرې له لارې مجاهدینو ته د قومندې ورکولو کار پیل کړ، چې د عملیاتو د پیل له وخته بیا د فتحې تر شیبې مسلسل له ټولو مجاهدینو سره په تماس کې و شیبه په شیبه یې قومنده ورکوله چې د نوموړي همدې ژوندۍ قومندې مجاهدینو ته خورا ډیره روحیه ورکوله او ټول کارونه له پلان سره سم مخته تلل.



کله چې د مخابرې له لارې خبر راغی چې مجاهدین د ښار زړه ته ورسیدل او د کندز محبس یې مات کړ، ملا عبدالسلام اخند بې اختیاره الله تعالی ته په سجده پریوت چې تر ۷ یا ۸ دقیقو د شکر په سجده پروت و . وروسته یې بیا له مجاهدینو سره د مخابرې او ټیلفونونو له لارې رابطې ته دوام ورکړ، نوموړي وروسته د مخابرې کار بل ملګري ته پریښود او خپله د کندز ښار داخل ته لاړ چې بیاتر پنځلس ورځو پورې چې مجاهدین په کندز ښار کې و او په جګړه بوخت و نوموړی له مجاهدینو سره په ښار او یا هم اطرافو کې و.

ملا عبدالسلام اخند او ملګري یې تر هغه وخته دکندز په ښار کې میشت او واکمن پاته شول تر څو چې د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د کندز د تخلیې اعلامیه صادره شوه تر څو عامه وګړي له بمباریو خوندي شي.د کندز په فتحه کې مجاهدینو ته بې شمیره غنائم په لاس ورغلل،ډول ډول وسلې او مختلف النوع لوکس اونوي موټرونه. سره له دې چې عادي مجاهدین لا د لوکسو موټرونو خاوندان شول خو ملا عبدالسلام اخند دهیڅ شه موټر هوس ونکړ، ملا همایون وایي ملا عبدالسلام آخند له فتحې وروسته هم په خپل هماغه زاړه ډاټسن موټر کې ګرځیده چې ډیر زوړ و او د مخې ښیښه یې هم ماته وه.

د کندز لومړۍ فتحې په نړیواله کچه په رسنیو کې پراخ انعکاس وموند. مجاهدینو ته یې نوې روحیه ورکړه او ددښمن روحیه او اعتبار یې تر ورستۍ کچې وځاپه. دښمن چې د کندز دې فتحې سخت سراسیمه کړی و په راتلونکي کال یې په کندز کې د پراخو عملیاتو اعلان وکړ، ددښمن سلګونه ټانګونه د دشت ارچي ولسوالۍ ته لاړل تر څو دا ولسوالي له مجاهدینو ونیسي. خو د ملا عبدالسلام اخند په مشرۍ د کندز مجاهدینو دا ځل له دښمن سره داسې تاکتیک وکړ چې دښمن هم ورته حیران شو، هغه دا چې کله چې دښمن په دشت ارچي کې په پراخو عملیاتو بوخت او ټول قوت یې هلته نقل کړی و، ملا عبدالسلام اخند په ډیره بیړه څوارلس سوه مجاهدین برابر اود کندز په ښار یې حمله وکړه، د کندز د ښار دوهم ځل فتحې نه یوازې په دشت ارچي کې ددښمن عملیات ناکام کړل بلکې په ټول ولایت کې یې ددښمن تهاجمي روحیه وځپله او بیا دښمن دعملیاتو جرأت ونکړای شو.

## شهادت

دښمن ډیر کوښښ کاوو چې د اسلام دغه ویاړلی غازي له منځه یوسي له همدې امله یې څو ځله د ملا عبدالسلام اخند د وژلو هڅه وکړه او هم یې څو ځله په دروغو د هغه د شهادت اوازه ګډه کړه.په نوموړي یوځل په ګورتیپه سیمه کې د امریکایي ډرون الوتکې لخوا دوه بریدونه وشول خو الله تعالی نجات ورکړ. نوموړي به همیشه د شهادت سوال کوو او حتی په مطبوعاتي مرکو کې به یې هم ویل چې شهادت یې له

ارمانونو څخه دی او دده په شهادت به اسلام او جهاد ته هیڅ نقصان ونه رسیږي.

د نوموړي يو ملګری موسی فرهاد وايي: په ۲۰۱۲م کې مو يو وخت له راډيو نه په ګډه خبرونه اوريدل وروسته يو راډيويي بحث پر دې خبره پيل شو چې امريکايان له افغانستانه وځي ، له څه اوريدلو وروسته ملاسلام اخند راډيو بنده کړه ماته يې وويل : الله تعالی دې د دې کافرانو ظالمانو مخ پرته کړي ، خدای دي پخپل طاقت سره ټوټه ټوټه او زموږ وطن دي الله ج ځنې خلاص کړي . او بل دې الله تعالی ماته د دوي په لاس شهادت نصيب کړي. دا زما يو خاص ارمان دی.

د ملا عبدالسلام اخند ددې خاص ارمان د پوره کيدو لپاره الله تعالی د ۱۳۹۵ هجري شمسي کال د حوت د مياشتې اتمه نيټه ټاکلې وه. نوموړی ددې ورځې په سهار په چهاردره کې و،وروسته دشت ارچي ته لاړ تر څو د خپلې مور ملاقات وکړي، غرمه يې له خپلې مور سره مجلس وکړ او بيا خپل کلي ته نږدې د اميرملوک په کلي کې د يوه مجاهد کور ته لاړ ، نوموړي په دې ورځ له مجاهدينو سره مشورتي مجلس هم درلود، په همدې کور کې ماسپښين څه بانډې درې بجې وربانډې د ډرون الوتکې درې ميزايل وتوغول شول چې يو په موټر او دوه په کور ولګيدل،او ملا عبدالسلام اخند ځای په ځای د خپلو دريو نورو ملګرو سره د شهادت لوړ مقام ته ورسيد. انا لله و انا اليه راجعون.

د نوموړي جنازه په همدې ماښام خاورو ته وسپارل شوه. او فاتحې يې څو ورځې وروسته په ټول کندز او ګڼو نورو سيمو کې واخيستل شوه. ملا عبدالسلام شهيد شو او دوه ماشومانې د يتيمو اولادونو په حيث ترې پاته شوې.

د اسلامي امارت لخوا د نوموړي د شهادت په اړه په خپره شوې اعلاميه کې راغلي: دکندز فاتح شهيد ملا عبدالسلام اخند شهادت خپل تر ټولو لوی آرمان باله، د ده په شهادت سره به نه تنها داچې د اسلامي امارت صف کمزوری نشي، بلکې سلګونه نور ځوانان به د قربانۍ او په اسلام د سرښندنې ميدان ته را ودانګي، الحاج ملا عبدالسلام اخند په خپله مدبرانه مشرۍ کې زرګونه داسې مجاهدين روزلي وو چې ان شاءالله هريو به د ده لاره تعقيبوي او د دښمن په وړاندې به لکه هغه د يوه قوي سپر په توګه له خپل دين، هيواد او آزادۍ څخه دفاع کوي.

## خاطرې او يادونه

د ملا عبدالسلام اخند نږدې ملګري دده د خاصيتونو او اخلاقو په اړه داسې وايي:

ملا عبدالسلام په دې سربيره چې له تصوف سره يې تعلق درلود او د پيرسباق صاحب مريد و تلاوت او اذکار يې هميشه کول، اذکار الصباح و المساء او مسنونې دعاګانې يې ياد وې او هميشه يې په خوله وې، بريتونه به يې په مسنونه طريقه هميشه کوچني کول، يو ملګری يې وايي: ما ورته وويل چې د مجاهدبريتونه بايد غټ وي. ده ځواب راکړ چې رسول الله صلی الله عليه وسلم بريتونه کوچني کول او له هغه لوی مجاهد نه و او نه به پيدا شي.

همدغه ملګری کيسه کوي چې ملا عبدالسلام اخند به په هر څه کې تيامن کاوو او زه به ډير ورته متوجه وم، حتی تردې چې ساعت يې هم په ښي لاس په لاس کاوو، ما ورته وويل چې د ساعت قانون دادی چې بايد په چپ لاس وي. ده وويل دا په کوم کتاب کې راغلي ته يې راوښيه. ما ورته وويل چې په ښي لاس کارول يې نو په کوم کتاب کې راغلي؟ ملا عبدالسلام راته دغه وخت هغه حديث ذکر کړ چې الله تعالی ښی والی يا تيامن خوښوي حتی په څپلۍ پښو کولو او سر ږمنځولو کې.

نظم او نظافت ملا عبدالسلام اخند ته ډير خوند ورکاوو، په کندز کې د معسکر مسؤل وايي چې کله به معسکر ته راغی نو چې په کوم اطاق کې به يې شپه وه نيمه شپه به چې تهجد ته پورته شوی و له هغه وروسته به يې د اطاق په نظم او جارو

کولو شروع کړې وه،دغه راز به چې د مجاهدینو هر مرکز ته ورغی نو به یې مجاهدینو ته وویل راځئ نن د نظافت اشر دی او بیا به په خپله لگیا و جارو کول، کاسې او لوښې مینځل او نور د صفایي کارونه به یې په خورا شوق کول.

د ولس په خلگو یې خورا ډیره مهرباني درلوده حتی داسې شوي چې یوه ولسي کس یې موټر ور وهلی او ډیر پرې گرم شوی مگر ده ورته تشه گیله او خبره هم نه وي کړې، یو ځل د مجاهدینو یوه ولسوال، معاون یې او د ولسوالۍ دکمیسیون مشر یو ولسي سپین ږیری وهلی و، ملا عبدالسلام چې کله خبر شو، دغه دریواړه مسؤلین یې بندیان کړل، او بیا چې کله دپوښتنو په مهال هغوی ورته اقرار وکړ چې موږ دا سپین ږیری وهلی، ملا عبدالسلام بي اختیاره په ژړا شو، تردې چې لویې لویې چیغې یې وهلې او په ژړا کې یې همدا ویل چې :اې الله تعالی که څوک زما دمسؤلیت په ساحه کې داسې کارونه کوي، زه ترې بیزاره یم، زه یې دغه کارونه نه تائیدوم، زه دغسې ظلم نه خوښوم. اې الله تعالی ما د دوی په گناه مه ور شریکوې.

ددشت ارچې په ولسوالۍ کې اربکیانو د سیمې د تخریب لپاره د نهرکهنې اوبه را خوشي کړې خو دغه اوبه د ترکمنو په یوه کلي ورغلې او تر ۷۰ پورې کورونه یې ونړول او ډیر خلک د کورونو پریښودلو ته اړ شول.دغه خلک لاړل په کندز او کابل کې یې حکومت ته ډیر خواستونه وکړل چې اوبه ترې واړوي مگر هیڅا یې غږ وانه ورید وروسته دوی ملا عبدالسلام اخند ته راغلل. هغوی په ملیونونو افغانۍ مصرف کړې دوه لوی اسکواټورونو یې راوستل او پنځه کیلومتره اوږد نوی نهر یې ویوست تر څو له دې اولسي وگړو اوبه په بله خوا لاړې شي.

د جگړې په میدان کې خورا غیرتي او د مطمئن مزاج څښتن و. په هیڅ وخت کې نه دي لیدل شوي چې چا یې وارخطایي یا د جنگ په وخت په غږ کې بدلون حس کړی و، حتی که کله به مجاهدینو شکست خوړلی و او پر شا به روان و هم د ده وضعیت به عادي و. په جنگ کې به یې په خپله شرکت کاوو او جهادي مینه یې په مزاج کې گډه وه هیڅکله یې د بهانې له امله له جنگ څخه ځان نه ځنگ ته کاوو بلکې تعرض ته به یې اولویت ورکاوو.

له بیت المال سره ډیر محتاط و او د دنیا شوق یې نه درلود سره له دې چې ډیر وخت یې د کندز ولایت د مسؤل په حیث وظیفه اجراء کړه اما په دې موده کې یې نه کوم مال او جایداد پیدا کړ او نه یې هم اقتصادي وضعه بدله شوه. یو طالب وایي چې تیر کال په لوی اختر کې یو چا ملا عبدالسلام اخند ته د قربانۍ لپاره پسه ورکړی و چې په کور کې یې حلال کړي، دی وایي زه د ملا عبدالسلام اخند له ورور سره د پسه په حلالولو بوخت وم خو ورور یې راته وویل چې زما په ټول عمر نه یادیږي چې په موږ دې قرباني فرض شوي وي، ځکه هستي مو دومره نه ده چې د اختر قرباني راباندې فرض شي.

ملا عبدالسلام اخند اسلامي امارت ته سخت وفادار و او اسلامي امارت یې په اوس وخت کې د ټرټولو معتبر حقاني صف په حیث پیژاند.کله چې ملا شهید ملا ختر محمد منصور رحمه الله د اسلامي امارت د زعیم په حیث وټاکل شو نوموړی له لومړنیو کسانو و چې په ډیره عجله یې له اسلامي امارت سره بیعت وکړ.بیا چې کله ځینې خلکو له اسلامي امارت څخه بغاوت وکړ. نو ده به خپلو ملگرو ته همیشه دا توصیه کوله. چې انسان له خپل انجام اوعاقبت څخه خبر نه وي کله چا ته انحراف مقدر وي، خو که خدای مکړه زه کوم وخت هم له اسلامي امارت څخه منحرف کیدلم گورئ چې تاسو مې اتباع ونکړئ،که زه له امارت سره وم او که نه وم خو له اوسه لا وایم چې همدا حقاني صف دی او هیڅکله له دې کاروان څخه ځان مه جلا کوئ.

رحمه الله تعالی

# د ملکي وګړو وژنه بریا نه ده

حارث

هغوی چې اولادونه یې په بهرنیو هیوادونو کې د عیش ژوند لري او دوی خپله د کابل په تر ټولو خوندي سیمو او د ګڼو موانعو شاته اوسیږي، هغوی چې له هیواد سره یې مینه تر دندې تړلې، هغوی چې تر امریکایي او شخصي- ګټو ملي او اسلامي ګټې قربانوي، چیرته به د افغانانود درد احساس ولري او چیرته به د خپلو شخصي او امریکایي ګټو لپاره د ولس د وینو له تویولو لاس په سر شي.

د کابل د سهامي اداري لومړي شریکوال اشرف غني په ۲۰۱۴ کال کې چې لا یې پوستونه له خپل دوهم شریکوال عبدالله سره نه وو ویشلي خپلو اجیرو عسکرو ته د پراخو بریدونو د ترسره کولو اجازه ورکړه او هغوی ته یې د بشري مصؤنیت داړ ورکړ، هغه وو چې تیر کال د روئیټر اژانس له یوه راپور سره سم، عسکرو یې یوازې په مې میاشت کې په هلمند او کندز کې ۷ زره د توپ مرمۍ په ولسي- سیمو ویشتلې وې، شراکتي اداري عسکرو ته د پراخو بریدونو د اجازې ترڅنګ له نیواکګرو څخه هر وخت د زیات پوځي ملاتړ غوښتنه ترسره کړې، همدا لاملونه دي، د ګوډاګي اداري مشران د ولسي- عام وژنې هیڅ پېښه نه غندي او نه یې هم په اړه کوم غبرګون ښیي.

د عسکرو له لوري د ولسي- عام وژنې له زیاتېدلو سره د کابل د اداري له لوري د رسنیو د کنترول تر څنګ هڅه کیږي، چې عسکر د ولسي وګړو په وژنې سره هیڅ ملامت نه کړای شي، تیره اونۍ د ګوډاګي اداري دوهم نمبر مشر- عبدالله په یوه غونډه کې وویل، چې داخلي عسکر د ولسي وګړو په وژنې سره باید تر پوښتنې لاندې رانه شي، یعنی که د ورځې سل وژنې یا زر وژنې، باید نه پوښتنه تري وشي اونه هم مجرم وګڼل شي، دا هغه څه دي، چې له عسکرو سره د ولسي وګړو په وژنه کې مرسته کوي.

د کابل د ګوډاګي اداري چارواکي دې په دې پوه وي، چې دا یو خل بیا د تاریخ تکرار دی، شوروي اشغالګرو او د هغوی بې دینه لاسپوڅو هم په افغانستان کې د خپلې بقا لپاره د ولسي عام وژنې استراتیژي پلې کړه، په خپلې بې رحمې جګړې سره یې تر ۲ میلیونو افغانان ووژل، خو آخر انجام هم جګړه د دوی په ذلت او ماتې پای ته ورسېدله، د اوسنۍ غلامې اداري غوڅ اکثریت برخې چې د کورنیو تنظیمي جګړو پر مهال یې د واک پر سر د زور ازمایي پر مهال د کابل په ګډون ګڼ ښارونه او سیمې په کنډوالو بدلې کړې، د خپل پرمختګ لپاره یې د ولسي وګړو د وینو ویالې وبهولې، خو بیا هم خپلو موخو ته ونه رسېدل.

دا چې د مجاهدینو بریدونه ډیر شوي او آن په ژمي کې یې هم رژیم ته د ارام ساه اخیستلو موکه ورنه کړه او هم ورځ تر بلې د ګوډاګي اداري د واک ساحه په کمېدو ده، نوځکه لاسپوڅې اداره د وحشت په خپرولو، د ډله ییزو وژنو په ترسره کولو او په ولسي- سیمود سختو توپچي او هوایي بریدونو په ترسره کولو سره غواړي د خپل پایښت وروستی هڅې ترسره کړي او په ځانګړې توګه د طالبانو د پسرلنیو عملیاتو د توندې څپې پیل ټکنی کړي، ځکه چې د افغانستان له جګړې څخه د امریکا نهیلي په ډېرېدو ده او د کابل په فاسدې او کمزورې اداري یې باور په ختمېدو دی، نو ځکه یاده اداره غواړي د خونړیو بریدونوپه ترسره کولو سره په عملیاتي ساحو کې پرمختګ ترسره کړي او د خپل لاس بري په ښودلو سره د ټرمپ د اداري باور ترلاسه کړي، تر څو مرستې پرې بندې نه کړي او همکاري ورسره پرېنږدي.

اجرتي قاتلانو په تیرو څو ورځو کې په خپلو وحشي- بریدونو سره لسګونه هیوادوال شهیدان او ټپیان کړل، خو دا مسلمان وژونکي دې په دې پوه وي، د ولسي وګړو په وژلو یا د هغوی د کورونو ا و باغونونو په ورانولو سره بریا نشي- ترلاسه کېدلی، دا په اسلامي روحیه والړ ولسي قیام هیڅکله په دغو وژنو نشي- غلی کېدلی، تاسو له خپلو بادارانو(امریکایانو) پوښتنه وکړئ، چې د کلیو او کورونو په بمبارولو سره دا اسلامي پاڅون ماتولی شئ، هغوی چې د خپلو وسلتونونو ټولې مرسومي وسلې یې وکارولې او د هر نسل الوتکې یې د افغانانو د وژلولپاره و ازمایلې، هرو مرو به په جګړه کې لومړی د خپلې ماتې او بیا ددې قیام د نه ماتېدلو یقین درکړي، نو تاسو (اجیرو عسکرو!) هم په دې یقین وکړئ، چې هیڅکله به په زمبورک الوتکو، په تفریحي چورلکو او د پردیو په ناچیزه وسلو کامیابي ترلاسه نه کړئ.

# اشرف غني دې لومړی د شریعت تلفظ زده کړي

زخمي افغان

پرون اشرف غني د سرتیرو د ورځې په مناسبت وینا کوله، هغه دا ځل طالبانو ته په دیني لحاظ چیلنج ورکړ.اشرف غني له طالبانو د نورو دیني پوښتنو تر څنګ دا هم وپوښتل چې: آیا په هغه خاوره کې جنګ جائز دی چې په محکمو کې یې (شرعیت) چلیږي...؟

د اشرف غني د خولې شرعیت ټکی مې را واخیست او په ګوګل کې مې سرچ کړ، خو هیڅ معیاري معنی مې ترلاسه نه کړه، د اشرف غني دې اصطلاح ته ژور متوجه شوم، دې پایلې ته ورسیدم چې د دروغجن او مکار مفکر تر اوسه د شریعت د سپیڅلې اصطلاح تلفظ هم نه دی زده او شرعیت یې بولي.

په دیني اصطلاح کې د شارع (الله جل جلا له) لخوا را استول شوي قانون یا اسلامي تګلارې ته شریعت وایي. الله تعالی خپل وروستني پیغمبر ته خطاب کوي( ثم جعلناک علی شریعة من الأمر فاتبعها و لا تتبع أهواء الذین لا یعلمون. الجاثیة ۱۸. ژباړه : بیا مو ته اې محمده! د دین په څرګنده لار ودرولې، نو د هغه تابعداري کوه او د هغو خلکو په هوسونو پسې مه ځه چې نه پوهیږي)

نو الله تعالی هم خپل قانون (شریعت) بللی دی. خو دا چې اشرف غني یې شرعیت بولي معلومیږي چې د دغه بې سواده مفکر تر اوسه د شریعت یا د الله د قانون د نوم تلفظ هم نه دی زده. خود به یې نه وي زده، چا چې ټول عمر د طاغوت او شیطان د قانون په مطالعه، زده کړه او تطبیق کې تیر کړی وي، هغه به د الله له قانون څخه څه خبر وي.

اشرف غنی ته به ورزده کړو چې د شریعت او شرعیت تر منځ دځمکې او اسمان فرق دی. که شرعیة د عربي مصطلح له نظره معنی کړو نو مطلب یې خپله شریعت نه بلکې هغه شی دی چې شریعت ته یې نسبت شوی وي لکه : فعل شرعی ، مسئلة شرعیة . نو په دې حساب اشرف غني فاحشه خطاء کړې، ځکه منسوب اسم یې د منسوب الیه په ځای کارولی، لکه څوک چې د کندهار په ځای کندهاری په خبرو کې وکاروي او ووایي: پرون کندهاری ته تللی وم ... خو مطلب یې کندهار ښار وي.

نو اشرف غني دې په دې پوه شي چې شرعي مناظره خو له ډاکټر عبدالله سره تاکنیزه مناظره نه ده چې د خو تخنیکي اصطلاحاتو، لغاتو او چارچوبي اشارو په کولو سره مخاطبین وربانديې دوکه کړې. شریعت د متعال رب قانون دی چې شیطاني اذهان یې د درک او احتواء تاب نلري. د شریعت د سم تلفظ لپاره همدومره خواری په کار دي لکه د امریکن ګردود انګلیسي لپاره دې چې کړي او اوس ستا او ترامپ دلهجې توپیر نه کیږي.

نو اشرف خانه! کوښښ شروع کړه، له سیاف نه د شریعت درست تلفظ زده کړه، کله دې چې د شریعت تلفظ زده کړ نو بیا له سیاف نه وپوښته چې که د شریعت له مخې واجب القتل مرتد پرویز کامبخش د کای آیدي د فشار له امله وبښل شي او په خارج کې د مسترح ژوند اعزاز هم ورکړل شي آیا دې ته شریعت ویلی شو او کنه؟

## هغه عالم چې وفات يي دټول عالم مرګ دی

# اروانښاد مولوي عبدالستار صديقي

مفتی محمدګل سعيد

دهيوادنوميالی ديني عالم ،جهادي اوسياسي شخصيت مولوی عبدالستار صديقي چې دعمرزياته برخه يی دديني علوموپه زده کړه،تدريس،تاليف اومبارزه کې تېره کړې ده.د مرحوم ملا شېر جان زوئ د ملا سيد محمد لمسی۔ د شهاب الدين کړوسی په ختهه بازيد خېل، اندړ په ۱۳۲۱ لمريز کال د غزني ولايت د مرکز اړوند د زلزله نومې کلي په يوه عالمه اوفاضله کورنۍ کې زېږېدلی دی. صديقي صاحب د هېواد له مشهورو عالمانو اوسياستوالو څخه ؤ،چې دغزني له نور المدارس نه فارغ اودخدام الفرقان تنظيم له عالي رتبه مسئولينو څخه ګڼل کېږي.

### زده کړې:

اروانښادصديقي صاحب لومړنۍ زده کړې له خپل عالم اوفاضل پلار څخه وکړې، په ۱۳۳۵ لمريز کال ددوديزوعلومودزده کړې لپاره نورالمدارس مدرسې ته لاړ اودهغې مدرسې په پنځم صنف کې ورته د داخلې شرف حاصل شو. دغه مدرسه دغزني په شولګرکې دسيمې دخلکوپه مالي مرسته دشوربازارحضرت صاحب فضل عمرمجددي (نورالمشايخ صاحب نورالله مرقده ) په اهتمام جوړه شوې وه . دزده کړې دوره يی څوارلس کاله وه ،څوارلس کاله وروسته به زده کوونکي ته دمولوی توب پټکی ورپه سرکيده اوجامعې ته به يی وړاندې کاوه. دې مدرسې يوه ليليه هم درلوده ،چې ټول مصارف به يی دخلکودعشراونورومالي مرستوپه واسطه ترسره کيده.په دې مدرسه کې دډيروليرو ليرو ځايونو طالبانودرس لوست اوډيرپياوړي مدرسين يی درلودل. دنورو مسايلوترڅنګ يی ښه لوی تشکيل هم درلوده ، خوکله چې په ۱۳۵۷ل کال کې کمونستانوکودتاوکړه.دامدرسه په کلي توګه وتړل شوه . ډيرشميراستادان يی زندان ته واچول شول اويوشميريی هجرت ته مجبوره شول ، چې وروسته يی په مسلحانه جهاد لاس پورې کړ. بايدوويل شي چې ددې مدرسې فارغان په وروستيوکې دهيواد نامتو عالمان شول اوپه ډيرو مشهورو عالمانو شمير ؤ، ددې مدرسې له استاذانو نه دوديز ديني علوم ولوستل ، په ۱۳۴۵ لمريز کال کې يي د فراغت سند تر لاسه کړ،اوديوه نوميالي عالم په توګه راڅرګندشو. کله چې له زده کړې فارغ شونو دده دلوړاستعداد له امله له فراغت سره سم په همدې جامعې کې استاذ وټاکل شو،چې زياتره شاګردان يی په استاذۍ وياړکوي. دادده مرحوم لپاره دلوی افتخارخبره ده چې دهيوادپه سطحه دلوی مرشد،کامل ولي اوسترصوفي حضرت صاحب ضياء المشايخ قدس سره دشفقت ترسيوري لاندې ورته دهيوادپه مقبولې، مشهورې اولويې جامعې کې استاذي نصيب شوې وه.

### سياست اومبارزه:

په ۱۳۴۵ لمريز کال کې چې کله د جناب حضرت صاحب محمد اسماعيل مجددي په مشری د خدام الفراقان تنظيم تاسيس شو او په فعاليت يې پيل وکړ، نومرحوم صديقي صاحب د خدام الفرقان په تاسيس او د هغه د ديني اهدافو او موخو په تطبيق کې پوره پوره ونډه درلوده، چې له همدې وخت يې سياسي ژوندپيل کيږي، او د خدای ورکړي استعداد له مخې د اسلامي مبارزې په بهير کې دومره رشد مومي

چې پیاوړی مجاهد، د تشکیلاتي مبارزې مبتکر، عارف سیاستمدار او د عادي خلکو په څېر ژوند کولو (بېلګه) ترې جوړېږي او له همدې وخته یې د خپلو ملګرو په همکارۍ د کمونستانو او د دین د دښمنانو په ضد خپل فعالیت شروع او منظمې هلې ځلې په کار واچولې، چې په دې لارکې یې نه ستړې کېدونکې خدمتونه ترسره کړل دا هغه شپې ورځې وې چې کمونستانو د هېواد په تعلیمي مرکزونو او دولتي اداروکې ځانونه ځای کړي ؤ. په ۱۳۴۹ لمریز کال کې یې د ندای حق جریده چې لومړی سر کې یې مرحوم مولوی رحیم الله زرمتی مسئول او دی یې د امتیاز خاوند ؤ، له یو نیم کال وروسته یې بیا دی مدیر او مسئول ؤو، نشر کړه او د داؤد ترکودتاه پورې یې و چلوله. دغې جریدې د خپل توان او وسائلو په اندازه د اسلام لپاره ښه خدمت وکړ چې د داود په کودتاه کې مصادره شوه . د داود له کودتاه (۲۶ سرطان ۱۳۵۲) سره متصل خلقیانو او پرچمیانو سترګې او خولې وازې کړې او په اسلامي فعالیتونو یې بندیز ولګاوه ، نوښاغلي صدیقي صاحب بیا تدریس ته مخه کړه اود تنګی آکا خیلو کلي کې یې امامت او تدریس پیل کړ. د ۱۳۵۷ ش کال د غوایي ترکودتاه یې په زړه پورې تدریس وکړ،او له کودتاه سره سم یې د کمونستانو په ضد مسلح جهاد پیل کړ. کمونستانو د ده د نیولو لپاره اقدام وکړ ،خوالله تعالی په خپل فضل اوکرم له هغوی څخه وژغوره . داچې کمونستان متوجه ؤاوغوښتل یې چې دی ونیسي. نوهماغه ؤچې ښاغلي صدیقي صاحب له خپلو دوو ملګرو هر یو شهید مولوی نصرالله منصور او مرحوم مولوی عبدالهادي چې اصل نوم یې عبید الله ؤو، سره دسنبلې په میاشت کې پاکستان ته هجرت وکړ او هلته یې په ګډه د عمومي اسلامي انقلاب لپاره لارې چارې سنجولې. دوئ درې واړه په لومړي سر کې د کندهار ـــ سپین بولدک په لاره کوئټې ته لاړل، هلته یې د یو واحد تنظیم جوړولو هڅې پیل کړې، بیا له هغه ځایه میرانشاه ته او ورپسې پېښور ته ورسیدل ، هماغه ؤو چې دمرحوم مولوی محمدنبی محمدي په مشرۍ د حرکت انقلاب اسلامي تنظیم جوړ او ښاغلی صدیقي صاحب یې منشي او وروسته بیا معاون وټاکل شو. په ۱۳۷۱ لمریز کال کې چې د کمونستانو د قدرت تخته د مجاهدینو په لاس نسکوره شوه ښاغلی صدیقي صاحب هم د مجاهدینو په قطار کې کابل ته راغی او د مجاهدینو په حکومت کې یې د سترې محکمې د قضایي معاون په توګه وظیفه سمبال کړه چې څه موده وروسته ځینې رهبران او چارواکي د جهاد د اهدافو په سرته رسولو کې پاتې راغلل او له هغې موقع څخه چې په لاس ورغلې وه ناسمه او نادرسته استفاده وکړه او د خود خواهۍ او قدرت طلبۍ مقابلې شروع شوې حالات ګډوډ شول ،واحده مرجع ورکه شوه ،خپل منځي اختلافات اوج ته ورسېدل ، او هر څوک د خپل سربادشاه وو ، دغې وضعې هر بادرکه افغان په غم اخته کړی ؤو او جهادي څېروپه مایوس حالت کې قرار درلود او ډېرو خلکو په مختلفو بهانو هغه څه وکړل چې ویې کړل او هغه څه پېښ شول چې توقع بلکه تصور یې هم نه کېده نوپه دې وخت کې د محترم مولوی صاحب عبدالستار صدیقي په شمول یوګڼ شمېر علماء د ذات البیني اختلافونو د لیرې کولو په کار بوخت شول خوڅه مثبته نتیجه یې ورنکړه، هماغه وه چې د حرکت انقلاب اسلامي تنظیم په متفقه او منظمه توګه خپله مقاطعه د دغې اداري سره اعلان کړه، صدیقي صاحب بیرته دار الهجرت ته راغی ،اوپه کورکیناست .

## د طالبانو په اسلامي تحریک کې:

په ۱۳۷۳لمریز کال چې دمرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهدنورالله مرقده په قیادت کې د طالبانو اسلامي تحریک رامنځته شو نو د حرکت انقلاب اسلامي تنظیم د حکومت له اداري سره په متفقه او منظمه توګه خپله مقاطعه اعلان کړه او د طالبانو سره ملګري شول په دې سلسله کې مرحوم صدیقي صاحب دامیرالمومنین ملا محمد عمر مجاهدرحمه الله د فرمان له مخې د عدلیې وزارت معین وټاکل شو، څه موده یې دغه مقدسه دنده په ښه توګه سرته ورسوله او وروسته یې بیا د

ستری محکمې د اداري مرستیال په حیث وظیفه اجراء کوله ،او هلته یې هم نه هېریدونکي خدمتونه وکړل . بیا چې کله صلیبي یرغلګرو زمونږ پرخاوره تجاوز وکړ او د طالبانو اسلامي امارت سقوط وکړ صدیقي صاحب له دې سقوط سره سم د دریم ځل لپاره پېښور ته را مهاجر شو او همدلته په دار الهجرت کې ترمرګه پورې د دیني کتابونو په مطالعه ،تحقیق ،تدقیق ، تالیف او لیکنو بوخت ؤ.

## تصنیفات

د مرحوم مولوي صاحب چاپ او ناچاپ آثار په لاندي توګه دي:

د قرآن کریم ترجمه په پښتو ژبه (غیر مطبوع)

مقدمةالتفسیر په عربي ژبه(غیر مطبوع)

عقائد نثر په پښتو ژبه(غیر مطبوع)

چهل حدیث په فارسي ژبه(غیر مطبوع)

چهل حدیث په پښتو ژبه(غیر مطبوع)

د مکتوبات امام رباني او د مکتوبات حضرت عروة الوثقی رحمهم الله د تصوفي مسائلو په ارتباط د تصوفي معضلاتو حل او شریعت سره تطبیق (یعني خلاصة المکتوبات في حل معضلات تصوف)(غیر مطبوع)

عقائدمنظوم په پښتو(مطبوع)

مثنویپه پښتو(مطبوع)

دیوانپه پښتو(مطبوع)یعني د نجات آواز په نوم کتاب

مثنویپه دري ژبه(مطبوع)

عقائدمطابق امالي(مطبوع) یعني د صدای نجات په نوم کتاب

نوموړي دجهاداومبارزې سربیره قلم هم له لاسه ندی غورځولی اویو لړ کتابونه یې د دیني علومو په بیلا بیلو برخو لکه :تفسیر، عقاید،تصوف او۰۰۰۰ کې لیکلي دي چې ځینې یې چاپ اوځینې یې ناچاپ دي . اروابنادصدیقي صاحب پیاوړی لیکوال ، شاعراوادیب هم ؤ.په فارسي اوپښتوژبویی اشعارویلي دي چې نمونې یې په کتابونوکې شته دي.

صدیقي صاحب ډیرخاکسارانسان ؤ.په طبیعت کې یې عاجزي وه ، دډیرونرمواوعالي اخلاقوخښتن ؤ، متقي ، پرهیزګاره اومتواضع عالم ؤ. په نقلي اوعقلي علوموکې یي لوی لاس درلوداوهم یې په تصوف علم کې عمیق معلومات درلودل ،چې کله به یې په مجلس کې دتصوف په اړوندخبرې پیل کړې نوداسې مشکلې عرفاني نکتې به یې بیانولې چې هراوریدونکی به یې په خبرونه پوهیده ، له دې نه هم دده لوړعلمي اوعرفاني استعدادله ورایه ښکاري. ما(ددې کرښولیکوال) دوه کرته ورسره دده په کورکې مجلسونه کړي دي،خوهغه خوند چې دده په مجلس کي مالیدلی دی تراوسه مې دبل چاپه مجلس کې پیدانکړ.دروندمجلس به یې کاؤه اوله رعب نه ډکه څېره الله تعالی ورکړې وه، اوله هرچاسره یې ښه اخلاق اوله شفقت نه ډک چلندکاوه.دی دښه خوی،نرم طبیعت ، رسافکراوفصیح نطق خاوندؤ،خوږې ژبې ، ورین تندي اوښکلیواخلاقویی دخلکوپه زړونوکې محبوبیت پیداکړی ؤ.

## مړینه:

مرحوم د عمر په وروستۍ لسیزه کې د رګ نساء او پښو له تکلیفه شکایت کول، چې د هغې د علاج او درملنې لپاره یې ګڼ ډاکټرانو، یونآني آو هومیوپیتیک حکیمانو ته په کراتو مراجعه وکړه، ولې د الله فیصله وه، تکلیف ته درملو د لنډمهالې ګټي څخه پرته څه خاص ګټه نه کوله، چې له امله یې هغه د دردونو ډیري زیاتې ګولۍ استعمال کړې، چې په پایله کې یې د مایي سیناګریسیو په نوم یوه بیماري را منځته کړه، چې عبارت په سینه کې د یوې غضدې نه ده، چې وظیفه یې ټول وجود ته ترسیل د ویني ده، د لومړي ځل لپاره د مذکور رنځ احساس په د ۱۴۳۷ د رمضان المبارک په میاشت کې وشو، چې د ډاکټرانو تر جدي مراقبت او تداوي لاندي ونیول شوو، ولې رنځ ورځ تر بلې زیاتیدو، د بدن د پوره قوت او ځواک سره سره وجود کې ډیره زیاته کمزوري محسوسیده، تر څو د ۲۰۱۷ میلادي کال د فروري د میاشتي په ۱۸ نیټه په روغتون کې داخل کړې شو، په ۱۹ تاریخ یې حالت نورمال شو، موږ فکر کول، چې

نـور ان شـاء الله ښـه شـو، کیـدای شي مازدیګر کور ته لاړ شو، څکه پـه همـدې ورځ چې څومره دوسـتان یـې عیـادت تـه راغلو، له هغوی سره یې په خوشـحاله اروا لیدنه وکـړه، او د زړه لـه کـومې یـې ورتـه دعاګانې وکړې، له هغـه وروسـته یـې ورو ورو حالت مخ په خرابیدو وو، تـر څـو پـه ۲۱ د فـــروري چـــې ۲٤ د جـــمادي الاول ۱٤۳۸ سره سمون خوري د سـه شـنبې پـه ورځ ماسپښنین پاو کـم یـوه بجـه حـق تـه وصل شو، انا لله وانا الیه راجعون.

جنـازه او تـدفین: لـه وفـات څخـه وروسته په همدې ورځ څلور بجې یې د جنـازې وخـت د پیښـور پـه لنـډې سـړک مقصود آباد کې اعـلان شـو، چـې د وفـات او جنازې په منځ کې د وخـت د کمـوالې سره سره جمع غفیر په جنازه کې شرکـت وکړو، چې قاطع اکثریت یې جیـد علـماء، شـیخ صـاحبان او طالبـان وو، د جنـازې لمـونځ یـې شـیخ صـاحب عبـد الرشـید شنواري ادا کـړو، چـې وروسـته د تـدفین لپاره غزني تـه نقـل شـو، د یـادونې وړ ده، چې په همدې ورځو کې د ځینـو سـتونزو له امله د طورخم سرحد پـه مکملـه توګـه بند وو، ولې محترم مولوي صـاحب سـید محمد هاشمي په ډیـر اخـلاص ورسره تـر تور خمـه ملګـرې شـو، او د لارې خنډونـه یې د خپلو تعلقاتو په مټ لـرې کـړل، او د شپې اته نیمې بجې لـه طورخمـه واوښـتو، لـه جـلال آبـاد څخـه ګـڼ مخلصـین او د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان پخـواني مجاهـدین او منسـوبین ورتـه راغـلي وو،

چې بیا دوی ټول په شریکه د جلال آباد په لور او بیا د کابل په لور حرکت وکـړ، د شپې یوه بجه کابل ته ورسیدو چې هلتـه پل چرخې کې ورته د شپې په یخه یخنـې کې له څلویښت موټرو نه زیات دوسـتان او مخلصـین پـه انتظـار ولاړ وو، چـې بیـا دوی د کـاروان پـه شـکل قلعـه جـواد تـه لاړو او هلتـــه ټولـــو د مرحـــوم صـــدیقي صاحب زیارت وکړو، او رب ذوالجلال تـه یې د مغفرت لاسونه لپـه کـړو، چـې هلتـه له څه ځنډ څخه وروسته بیـا د غزنـې پـه لـوري وخوزیـدو، د چهـار شـنبې پـه ورځ سـهار مهـال شـپږ بجـې خپـل کـور تـه ورسیدو، د خپلوانو او دوستانو د زیـارت او کتلو نـه وروسـته ماسپښـین دوه بجـې په داسې حال کې خاورو ته وسپارل شـو، چـې پـه زرګونـه کسـان ورتـه نمجنـې سـترګې ولاړ وو، روح دې شـاد، یـاد دې تل تر تله وي.

## د مرحوم ځیني ځانګړتیاوې:

مرحوم ځیني ځانګړتیاوې درلـودې، چـې پـه ټولنـه کـې ډیـرې کمـې لیـدل کیږې،

د جهـاد د مهـال د ټولـو لـوړو ژورو سربیره د الله په فضل سره له خپل منځې جګړو او د مسـلمانانو د وژلـو او توهینولـو څخه لرې پاتې شوی.

له غیبت څخه بـه یـې حتـی الوسـع ډډه کوله، کلـه چـې بـه چـا ورتـه د کـوم کس غیبت پیل کړو، نو مرحوم به وویـل، پریږده یې د غیبت مخ پرتـه کـوه، او مـخ به یې ترې واړول.

پـه سـفر او حضرـ کـې د جمـع د لمانځه لـه تکبیر اولی سره سخت پابنـد وو،

په شرعـي مسـائلو کـې ډیـر محتـاط وو، تل به یې عمل په احـوط قـول کـول، د مسلمانانو له تکفیر نه یې ډډه کوله، اګـر چې ځینو فرقو ته به سخت غصه وو.

مسجد ته به تر ټولو مخکې تلو، او تر ټولو وروسته به راوتو.

د تهجد او اشراق لمـونځ یـې بالکـل نه قضا کول، الا ما شاء الله.

په مجلس کې به یې د مقابل لـوري د مشر او کشر حتی الوسع احـترام کـول، او کله یې هم څـوک د مجلس پـه اوږدو کې بې عزتـه کـړی نـه دی، نـه یـې چاتـه سپکي سپوري په مجلـس کـې ویـلي، پـه مجلس کې چې به کلـه څـوک د دوی پـه مخکې په افلاتو سر شو، نـو خـاموشي بـه یې اختیار کړه، ذکر ته به یې زور ورکړو.

ټـوقي، بـې ځایـه خنـدا ګـاني او ښکنځل یې له سره عادت نه وو.

زما سر

زما سر به هلته خلکو زما سر وي

چې د توري ګوزارونو سره سپر وي

سر یې مه بوله لعنت ورباندي وایه

چې د خاوري دښمنانو ته نوکر وي

# ملا عبد السلام

# د عیاشانو او درویشانو د بېلتون سمبول

(خپلواک)



په ظاهره یو نوم وه، خوپه حقیقت کې یوخوځښت، یوکاروان اویو داسې فولادي عزم و،چې د نړې له مغرور یرغل او دقیقې ټیکنالوجې سره د یو ې بې باکې او بریالی مبارزې رمز اوسمبول وګرځید. نه د پاکستان درې کلن تور زندان د هغه اراده خامه کړه اونه د داعش فتواوو د هغه عقیده خامه کړه.هغه خپل ځان، خپل مسئولیت اوخپل هدف وپېژاند او د پتنګ په څیرې ځان پرې قربان کړ

مسلمانې میندې د دې امت لپاره په هره پیړۍ کې په هره سیمه کې خو همداسې اتلان زیروي ترڅو د الله دښمنان ویده امت مړ ونه ګڼي او د توحید کلمه ترقیامته ژوندۍ وپایي.

ملا عبدالسلام د یوې پیړي یو اتل و.هغه د مینې اوعاطفې سمبول و چې په جګړه کې له هرچاسره دغه خداي ورکړي نعمتونه اوصلاحیتونه نه وي.

زړور جنګیالي د یروخت د خپلو متو په زورمغروره شي اوبیا له مشرانوسره هم بې پرواشي، خوملاعبدالسلام د یو رښتیني مومن مجاهد په روحیه د امیر په یوه وړوکې اشاره، پیل شوې جګړه هم دروله او ولاړه جکړه یې هم تیزوله. ځکه چې د هغه عقیده دا وه چې په وړه بې اطاعتې د الله نصرت او رضا دواړه له لاسه وزي. نن که له یوې خوا هغه په لوړ سر الله ته ورغي؛ خو بل خوایې ترشایوه داسې محتاطه اومسئولانه تګلاره پرېښوده چې د ده پیروان به یې تل تعقیبوي او اجربه یې د ده روح ته رسي.

هغه وخت ښایې مریم غني په نایټ کلب کې پرلمنه له خورو ورو ښاځکوسره ، په نشه مستو سرو سترګومینوالوته غریزه پارونکې سندره اوروله؛ رولاغني به په محرف انجیل کې د جنسي۔ اړیکو دازادي مسئله لټوله چې ملاعبدالسلام له تکبیرونو سره ورستۍ سلګۍ وهلي! د نړې تاریخ به له همدې ځایه د عیاشانو او درویشانو صفونه سره بیل کړي!

"طالبان ولې نه ماتیږي" دا یوه داسې پوښتنه ده ؛ چې لا تر اوسه یې چا سم او قانع کوونکی ځواب نه دی ویلی او دا پوښتنه د نړیوالو فوځي جنرالانو او نظامي کارپوهانو په ذهنونو کې هم تل سره ځرخې را ځرخي.

طالبانو داسې یوه هیښوونکې جګړه پیل کړې ؛ چې د نړۍ په تاریخونو کې قطعاً سارې نه لري.

د جګړې دواړه لوري متنوعې او (په عین حال کې) سختې حیرانوونکې وسلې کاروي.

که ووایم چې دا د (میږي او تمساح) جګړه ده ؛ نو خندوونکې یې مه بولئ ؛ ځکه چې لویه فولادي هیولا به روانه وي ؛ خو داسې یوه زېړه پلاستیکي (د غوړیو بوشکه) یې وخوري : چې قیمت به یې هم ایله بیله پنځوس افغانۍ وي.

د جګړې یو لوری دومره قوي دی ؛ چې له فضا نه هم لس سانتي (له ځمکې لاندې) شی لیدلای شي ؛ مګر بل لوری یې سرمانښام لا یوبل نه سره ویني.

یوې خوا ته داسې لوجستیکي امکانات برابر دي ؛ چې هېڅ ډول ستونزه نه پکې تر سترګو کیږي ؛ مګر بلې خوا ته یې یوه ګوله وچه ډوډۍ هم غنیمت ګڼل شوې ده.

د جګړې یو لوری (پرته له هوایي ځواک څخه) یو قدم لا وړاندې نه ځي ؛

# طالبان ولې نه ماتیږي؟

**م - وردګ**

مګر بل لوری یې یوه الوتکه هم نه لري.

د دغې معماډوله جګړې یو لوری ، د ټولې نړۍ (په شمول د ملګرو ملتونو او ناټو ترون) له هر ډول ملاتړ څخه برخمن دی ؛ مګر د دغه بل لوري سره یې یو دولت هم (له ډاره) ښکاره کومک نه شي کولای.

په دغې جګړه کې داسې عجیبې حملې کیږي ؛ چې د انسان عقل پکې عاجز شي ؟

د بېلګې په توګه : غربي نړۍ د ماینونو د کشلو د پاره کافي او ښې پرمخ تللې وسیلې هم لري ؛ مګر همدغه وسیلې یې په همدغو ((ګازډبو او غوړینو بوشکو)) باندې سپیرې د آسمان لوري ته استول کیږي.

سړی سم نه پوهیږي ! چې دا څه ډول جګړه ده او څه ډول وړاندې ځي ؟

داسې ښکاري ؛ چې ټوله نړۍ یوې خوا ته او افغان طالبان بلې خوا ته دي ؛ نړیوال جنګیالي نړیواله تکنالوژي لري او طالب جنګیالي طالباني وسلې (ښوره ، بوره او زېړه بوشکه) مګر بیا هم نړۍ ماتې منلې ده ؛ خو ټېښتې ته د ختو پزه لټوي.

د طالبانو پر وړاندې چې کوم کسان په جګړه کې ښکېل دي ؛ هغوی داسې فکر کوي ؛ چې ګني له پېریانانو سره یې اخ ډب دی.

ټوله نړۍ سترې ستړې شوه ؛ مګر افغان طالبان ورځ تر بلې دمراسته کیږي او پیاوړي کیږي ؟

که و وایم چې افغان غرب جګړه د (برمودا تر مثلث) پېچلې ده ؛ نو ټوکه یې مه ګڼئ.

سړی انګېرلای شي ؛ چې د طالبانو جګړه د آسمان له کلک ملاتړ څخه برخمنه ده ؛ کنه عقل خو دا نه شي منلای ؛ چې یو وړوکی ټولی د له ګردې نړۍ څخه په نریې سره جګړه وګټي.

څوک شته چې ماته قناعت راکړي ؟

یو خو دا ماشومانه دلائل دي ؛ چې وایي "طالبان د پاکستان له ملتیا او مشورو څخه برخمن دي" دا خو عاقلانو ته قناعت نه شي ورکولای.

یا دا چې دا ځینې (بې منطقه) هوښیاران یې روسیه ملګرې بولي ؛ دا هم تش تبلیغ دی او داسې تبلیغ : چې د سړي خندا ورته راشي

# شهید ملا عبدالسلام

منصور (تخاری)

فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهم وَمِـنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرْتَ

برخی با قافله شهادت راهی دیار معشوق شدند و برخی در رکاب صبر وانتظار در کوچه های پر فراز و نشیب روزگار به جانبازی در میان زمینیان رسالت ایثارگری یافتند اما قدم های ایشان هیچگاه زمین گیر خاک نبوده است واین اجر مجاهدتشان است که کالبد رنجور و روح پر تمنای شان را به هم رزمان شهیدشان واصل می کند.

بار دیگر اذان شهادت ازخیام ولایت کندز و اردوگاه سپاهیان امارت اسلامی برخاست و عطرشهادت را به مشام ها رساند.

مرد دلیر دیگری ازمیان ما بار سفر بست، ما ودیار فانی را الوداع گفت:

هم رزم دیگری را دریـن صف از کف دادیم ... پیکر مطهروآغوشته بخون گرمش را در دل خاک نهادیم وبرمزارش اشک ریختیم.

مردی که در راه خدا رزمید ..... کشت وسر انجام کشته شد که کشتن درین را خشمی مقدس باید وکشته شدن را عشقی مقدس! نویسندهٔ در باب شهادت تحلیلی جامعه شناسانهٔ دارد ومی گوید: شهادت تزریق خون در رگهای خشک جامعه است وقتی جامعهٔ دوچار رخوت ورکود ناشی از کم خونی گردد انسانهای وارستهٔ از آن جمع به پا میخیزند وبا نثار خون خویش به پیکر سرد وبی روح جامعه خون گرم تحرک وتپش تزریق میکنند وجامعه را حیات دوباره می بخشند. با نثار همین خونهاست که جامعه از نابودی نجات می یابد.

برادرما شهید ملا عبدالسلام یکی ازآن جمله بود که با نثار خون نسبت به دین ومیهن خود ادای مسئولیت کرد. چون پل شهادت اصلی ترین وسیله رسیدن به معبود است بدون تردید «شهید ملاعبدالسلام» یکی ازمردان الهی ودلیر وشجاع باعبور از این گذرگاه درخشان برای همیشه جاویدان باقی ماند وبه آرزوی دیرینه خودکه شهادت در راه خداست، نائل آمد وعزت وسربلندی را برای ملت شریف خود افغانستان وهمه مجاهدین امارت اسلامی بویژه مجاهدین ولایات شمال به جای گذاشته وثبات واستمرارخط جهاد را با خون خود تضمین نمود و راه شجاعت را به همه ملت آموخت.

ایجاد آرامش واطمینان روحی وتأمین سلامت مجاهدین ولایات شمال بالخصوص ولایت تخار وکندز مرهون همت بلند وتلاش‌های صادقانه شهید ملاعبدالسلام است که باتمام توان وتلاش بی‌وقفه خود زمینه آسایش وفتوحات را به مجاهدین امارت اسلامی فراهم نمود.

ایمان راسخ و اراده آهنین درجهاد فی سبیل الله وحماسه وایثار و شجاعت مثال زدنی این شهید بزرگوار از او اسطوره و رزمنده ای قهرمان ساخته بود که در رشادت وشجاعت ومهارت، همواره زبانزد عام وخاص بود وحماسه های زیادی را در بسیج

مجاهدین این ولایات ودفاع از دین مقدس الهی ازخود به یادگار گذاشته وجان خود را در این راه فدا نمود.

تاریخ گهربار و پرحماسه امارت اسلامی همواره بیانگرتجلی و تاسی راست قامتان و دلباختگان عرصه جهاد وشهادت در راه خدا ومقتدای خویش حضرت محمد مصطفی است، امروز مدافعان حریم دین مقدس رب لایزال ، شجاعانه وعاشقانه، با بذل جان خویش ازان دفاع می‌نمایند و باشهادت خود برگ زرین دیگری از حدیث عشق و تبعیت از مولا و سرور خود رقم می‌زنند.

برادر شهید ملا عبدالسلام دشتهاوبیابانهای شمال افغانستان را بارها دیده وپاهایش باریگ وسنگ وخارآن دشتهاآشنابود وسرانجام نیزخون پاکش در همان مناطق برخاک ریخت وی هنگامی که با چندرفقای خود غرض تنظیم وانسجام مأموریت جهادی عازم یکی از ولسوالی های ولایت قندزبود مورد حملهٔ طیارات دشمن سفاک قرار گرفت وبه شهادت رسید.

اناللّٰه وانا الیه راجعون

از پهنهٔ این نیزه خاک تاعرش اعلی ولقاالله فاصلهٔ است که عابدان را بعضاً باصدساله عبادت نیز توفیق طی آن نداشته وشهیدان در لمحهٔ طی آن طریق میکنند، به لقاء رفیق اعلی می پیوندند واز خوان لازوال رحمتش بهره ها میگیرند خوشا به حال شهیدان . خداوندا، این دفتر وکتاب شهادت را همچنان به روی مشتاقان باز، وما را هم از وصول به آن محروم مکن. خداوندا، کشور وملت ما هنوز در آغاز راه مبارزه ونیازمند به مشعل شهادت است، توخود این چراغ پر فروغ را حافظ و نگهبان باش و به اجابت برسان خداوندا همه شهدای انقلاب اسلامی مارا باشهدای بدر واحد محسوب فرما. واز برکت خونهای پاک آنان کشور مارا از لوث وجود دشمنان اسلام پاک گردان . ازخداوند، عاجزانه مسئلت می‌کنیم تا نتیجه این دلاورمردی‌ها و رشادت‌ها را نابودی عناصر اجنبیان وخودفروختگان کشور قرار دهد وپیوند انقلاب امارت اسلامی به انقلاب حضرت امام مهدی هر چه زودتر محقق شود. آمین

## لقمان حکیم رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي :

کوم کار چې د الله د رضا لپاره کوي په هغه کې د انسانانو نه ويره مه کوئ.

په کوم نعمت کې چې شکر وي د هغې پاي نشته او په کوم نعمت کې چې ناشکري وي د هغه پايښت نه شته.

له ناپوهانو سره ډېره ناسته ولاړه مه کوئ چېري تا سو به هم جاهلان کړي.

ډېر اوري او لږ غږيږي.

الله او مرگ هيڅکله له ياده مه باسي ، خپله ښيگړه او د بل بد گړه هيره کړئ.

په هر مجلس کې چه د الله جَلَّجَلَالُهُ ذکر کيږي گډون پکې کوي او د بدانو له ناستي نه ځان ليري ساتئ.

که د ژبې له زيان نه ځان ژغورل غواړي نو چوپ (غلي) اوسئ.

په لمنځه کې د زړه ، په مخفل کې د ژبې ، په غصه کې د لاس او په دسترخوان د گيډي ساتنه کوئ.

ريښتا خبره مه پټوي او دروغ خبر له سره مه کوئ.

په علم سره زړه داسي ژوندي کيږي لکه وچه ځمکه چې پر باران.

د عقل په څير هيڅ دولت نشته او د جهالت په څير هيڅ غربت.

سهار د لمر ختو په وخت کې مه ويده کيږي ځکه د ا د عبادت وخت دي پدي وخت کې خوب د بدبختئ نه ډك وي.

# امریکا اخر څه غواړي؟؟

فاتح کاروان

په دې موضوع ګڼ شمېر کتابونه، مجلې، وړې رسالې او مقالې لیکل شوي او لا هم په دې موضوع لیکنې او څېړنې دوام لري، له ټولو څخه پایله دا لاسته راځي چې امریکایي حکومت د یهودو لاسپوڅې دی او نظامي ځواک یې هم د یهودو د اهدافو لپاره استعمالیږي، اقتصادي او سیاسي واک او چارې یې هم د یهودانو لخوا اداره او کنټرولیږي، نو اوس که موږ وګورو چې امریکا یواځې اسلامي هېوادونه او ځمکې خپلې مستعمرې ګرځوي، خو لکه د پخوا په څېر خلک نصرانیت ته نه رابولي بلکې ډېر تمرکز یې پر دې خبره کړی چې څه ډول په اسلامي ټولنو کې اسلامي فکر له منځه یوسي((تر څو چې مسلمان امت ضعیف او د یهودو د نړیوال ریاست لپاره د یو قوي دښمن په حیث پاتې نه شي))او د همدې کار لپاره یې په نظامي، سیاسي، کلتوري، اقتصادي او نورو اړینو برخو کې پراخه پانګونه او فعالیتونه کړي دي.

که تاسو د امریکا له داخلي ستونزو، پورونو، نا امنیو او بحراني حالت نه خبر شئ، نو حیران به شئ چې امریکایان خپله د فقر سره لاس او ګریوان دي اخر څه وجه ده چې بیا هم په ټریلیونونو ډالر پانګه له امریکا نه بهر په نورو ملکونو کې استعمالوي؟ د فکر او پوهېدنې ځای همدا دی چې امریکایان د جاپان، فرانسې، قطر، کویټ او سعودي په شمول ګڼ شمېر هېوادونو کې تر ۷۰۰ پورې نظامي اډې لري او په دې توګه یې د نړیوالو نفرت له امریکا نور هم زیات کړیدی دا د څه لپاره؟ امریکا د افغانستان د طالبانو، د مصر-د محمد مرسي، د لیبیا د معمر القذافي، د عراق د صدام حسین او د سوډان د عمر البشیر د نظامونو په څېر قوي او د خلکو د خوښې حکومتونه له منځه وړي او په بدل کې لیبیا د انارشیزم، عراق د کورنۍ جګړې او ایران، افغانستان د شړېدلې ډیموکراسۍ او سوډان د تروریستو او اسرائیل نوازه نصرانیانو منګولو ته سپاري، په میلیونونو مسلمانان په شهادت رسوي، جوړ نظامونه یې له منځه وړي،مقدساتو او عنعناتو ته یې توهین کوي او د ښځو د حقوقو، سولې او بیا رغاونې په نومونو د مسلمانو ملتونو سوله په جګړو، اتفاق په نفاق، آباد کورونه په خیمو او په اسلامي لباس ملبسې ښځمنې د غرب په پتلونونو او نیکرونو نازوي، ځوانان یې د تعلیم او پرمختګ پر ځای لوبو، سینما، ډمتوب او لادینیت ته هڅوي دا ټول هغه څه دي چې امریکایي استعمارګران یې د خپلې ایجنډا او پالیسی اساسي اهداف ګڼي، نو له همدې ځایه ده چې پوه شو د امریکا د جګړه ییز سیاست قرباني یواځې اسلامي هېوادونه دي دا ټولې ناروا وې د یهودو د ګټو لپاره کوي او د یهودو هدف بیا دادې چې اسلام او مسلمانان همداسې کمزوري شي خو تر څنګ یې د نصراني امریکا د نابودۍ هیله هم لري، ولې چې یهود دجال ته په تمه دي او د دجال راتلو نه وړاندې د خپلو ټولو دښمنانو (ټولو غیر یهودو) د له منځه وړل د دوی لپاره تر ټولو مهمه دنده ده؛ تاسو وګورئ اسرائیلي یهودي پوځ پرته له فلسطین نه په هیڅ یو هېواد کې نظامي حضور او مداخلې ته زړه نه ښه نه کوي بلکې غواړي چې په ختیځ او لویدیځ کې خپل اهداف داسې په لاس راوړي چې د دوی پوځیان په کې هیڅ مداخله ونکړي بلکې دا قرباني باید امریکا ورکړي، بلخوا امریکا هم د یهودو هر امر ته لاس په نامه ده خپل پوځ، اقتصاد، حیثیت، خلک او ګټې یې د وړوکي اسرائیل د قوي کولو او پراختیا لپاره په خطر کې اچولي دي.

بلاخره دې نتیجې ته رسیږو چې امریکا په نړۍ کې د شر او فساد سرچینه ده، د ټولې نړۍ امن یې خراب کړی او امریکایي عسکر د دجال لښکر حسابیږي خو داسې لښکر چې خپله یهود او دجالي فکر لرونکي لادینان هم دا نه غواړي چې امریکا دې د یو ځواک په حیث پاتې شي، البته وخت ته اړتیا ده چې د یهودو اهداف تر لاسه شي نو امریکا به هم د یهودو په دښمنۍ کې خپله سزا وګوري، زموږ لپاره همدومره درس بس دی چې و پوهیږو: امریکا هیڅکله د افغانستان جوړول، پرمختګ او یا دلته د جګړې خاتمه نه غواړي، که امریکا وغواړي هم څه نه شي کولای ځکه چې د دې روانې اسلام ضد جګړې قومانده د یهودو په لاس کې ده، اما هغه جدا خبره ده چې که الله تعالی امریکایان دلته د ذلت او شکست سره مخ کړي او دوی تیښتې ته مجبور شي، بېشکه الله جل جلاله ته دا چاره هیڅ سخته نه ده، د همداسې یوې ورځې په تمه چې یهود او نصارا په خپلو کې یو بل وخوري او اسلامي امت یې له شره وژغورل شي.

# ګلځونه

## جواني

جوانی تحفه ی ناب خدا هست
جوانی نعمتی از کبریا هست
جوانان قدر این گوهر بدانید
که شاید اندکی در آن بمانید
پیام این سخن هست با جوانان
چه زن باشد ویا از جمله مردان
چرا غافل شدی از قبر و محشر؟
چرا ارزان فروختی این تن وسر؟
چرا ساکت شدی بر دین احمد؟
چرا خنجر زدی قلب محمد؟
چرا افتاده در گرداب شیطان؟
به رنج افتادی وهستی پریشان
چرا اینقدر لجاجت بینمازی؟
از معبودت مگر تو بی نیازی؟
چرا گشتی نوک تیر شیاطین؟
اصابت میکنی هر لحظه بر دین
روی دنبال هر فسق و گناهی
برای جامعه رنگ سیاهی
پدر دلسوز تو هستش شکسته
ز مادر شرم کن قلبش شکسته
پی دزدی خیانت یا که غارت
به دنبال فساد یا دود عادت
شدی مجرم زجرمت بی خیالی
خدا بیند تورا هست این حوالی
چرا این مد پرستی کرده بیداد؟
همه دختر، پسر هم گشته برباد
چرا این دختران در اشتباهند؟
میان کوچه و بازار پناهند؟
نه پرده و نقاب بر چهره دارند
نه ترسی از خدا در سینه دارند
هزاران رنگ و روغن روی صورت
نه شرم است و حیایی بهر غیرت
از ماهواره گرفتن این ضلالت
به گوشی های پر نفرین و لعنت
به نامحرم میکند خنده تبسم
به آتش رفتن خود کن تجسم
دلیل این چراها یکصدا است
جدایی از خدا و مصطفی است
بیا برگرد به آغوش خداوند
به احکامش بشو همواره پایبند



## یو څوک تللي دی
## دنیا ورپسې ژاړي!

اجمل واکمن

غــــم دی اوښـــکې دي غوغـــا ورپســـې ژاړي
یـــو څـــوک تللـــی دی دنیـــا ورپســـې ژاړي

جـــدایي یـــې زړونـــه دومـــره نـــري کـــړې
چـــې نـــوم یـــاد شي د اشـــنا ورپســـې ژاړي

د شـــمال د تـــورو غـــرو یتـــیم کبلیـــه!
تنهـــا تـــه نـــه یـــې بلهـــا ورپســـې ژاړي

بیـــا د کـــوم حســـین ځـــواني لحـــد تـــه لاړه؟
چـــې پـــه چیغـــو کـــربلا ورپســـې ژاړي

د دې کـــلي خلـــک روږدي پـــه ژړا دي
چـــې څـــوک ووايـــي الله ورپـــسي ژاړي

عجیبـــه مقـــدس غـــم یـــې دی واکمنـــه
چـــې پـــه لپـــو کـــې دعـــا ورپســـې ژاړي

# شعر

## طالبه یاره!

شکورالله همراز

ولس درسره کړی دی قیام طالبه یاره!
راځه! د غزاګانو ګل امام طالبه یاره!

غرور د نړیوالو او قوي ټیکنالوژي
راګیر دې کړه په ځه ملنګي دام طالبه یاره!

د تورو شپو په غیږ کې ځې د روڼ سهار په تمه
له ستورو دې اخستی دی الهام طالبه یاره!

نصرت د پاک الله به در سره وي تر منزله
چې کړې په مظلومانو باندې پام طالبه یاره!

اقصیٰ دې انتظار کړي د مهدي کاروان عسکره
ور ولېږه د مینې ډک پیغام طالبه یاره!

همراز تسل چې لپه په دعاء کړي داسې وایي
خاوند دې مددګار شه ګام په ګام طالبه یاره!

---------------------

محمد اسلم اسلم

دا غرونه یې پیداکړې دي اسمان یې پیدا کړی
انسان یې پیداکړی دی حیوان یې پیدا کړی

دوزخ او جنت دواړه دي زما او ستا لپاره
خو شرط یې ورته ایښی امتحان یې پیدا کړی

کلام د پاک الله دی خو قانون زما اوستا دی
تورات یې نازل کړی دی قران یې پیدا کړی

دا ستا لپاره جوړ ترینه عذاب کله رحمت شي
د شړکنده باران سره طوفان یې پیدا کړی

پنځه وخته لمانځه کې که ته خدای یادی جومات کې
مرغی یې ثنا وایې ګلستان یې پیدا کړی

اسلمه عاجزه کړه یو عاجز غوندې بنده شه
ته هم له خاورو جوړ یې خاکستان یې پیداکړی

## غزل

محمد رفیق هاشمي

له قبره دې چې لاړ شم بیرته بیا درته راځم
جانانه! په فراق دې را زیاتیږي د زړه غم

آهونه مې دودونه کړي لمبې یې څکه نشته
له پاسه پرې وریږي د خوړمنو سترګو نم

لیلا د ازادۍ ته تر سهاره پورې ګورۍ
د شمعې پروا مکړۍ زه پرې وینې څڅوم

شهیده! د یتیم بچي دې خیر که زانګو نشته
زما غیږه خو شته، زه یې په مینه زنګوم

وطنه لا به څومره سینګارونه را نه غواړې
د هر ګړنګ کمرونه دې په وینو رنګوم

عادت دی چې د ښکلو نظر مات به سپیلني شي
قربان اسلامه! تا ته فدایان لوګی کوم

### امام غزالي رحمة الله علیه:

ترڅوزړه پاک نه شي ،ټول بدن په مصیبت کې اخته وي.

### دحضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غوره ویناوي:

۱ ــ هرښه کار په پیل کې ناشونی وي.
۲ ــ دانسان ستر دښمن دهغه ګناه ده.
۳ ــ دچا علم چې له ماځخه کم وي زړه مې پرې درد کوي اوچې د ډیر علم خاوند وي کینه مې ورته په زړه کې نه راځي.

# بنام هشت مارچ

م هـ

از سالیان درازی بـه اینسو در اکثریـت دوران هـا و حکومـت های قبلی و حکومت اسلامی فعلی هر سال تاریخ هشت مارچ را بنام روز جهانی زن نامیـده و از آن روز بـه نـام یـک روز مقـدس و تـاریخی تجلیل بعمل میاید و گویـا حقـوق زن فقـط بـه آنـروز منحصـر شـده و مردهـا خواسته و ناخواسـته بایـد بـه زن هـا چـه مـادر و چـه همسر و یا اقارب و نزدیکان بایـد آن روز را تبریـک گفتـه و حتی تحفه هـا نیـز بایـد بدهنـد ولـی اگر از اکثر زنها پرسیده شود که:

خواهر مسلمانم این روز را چرا تجلیل میکنید و چـرا بنـام روز زن این روز را انتخاب کرده اید ؟ در جواب میگویند نمیدانم ! واقعا جای تأسف است.

نظر به گفتـه هـای بعضـی هـا کـه آنهـم موثـق و ثابـت شـده نیست میگویند که تقریبا پیش از صد سـال قبـل در آمریکـا یـک تعداد زنها بخاطر بعضی از حقوق شخصی شان بر ضد دولت وقت قیام کردند ولی توسط حکومت همان وقت سرکوب شـد و حکومـت بعدی بخاطر بدنام کردن حکومت قبلی و نیک نام جلوه دادن خـود در نظر مـردم هـمان منطقـه از روی سیاسـت هـمان تـاریخ هشـت مـارچ را کـه آن زن هـا در آن روز سرکـوب شـده بودنـد هـر سـال تجلیل کـرده و آهسـته آهسـته تجلیـل کـردن از روز هشـت مـارچ شکل عمومی بـه خـود گرفـت و مـا مـردم افغانسـتان بـدون هـیچ آگاهی به تقلید از آن، هشت مارچ را تجلیل میکنیم.

در حالی که مـا افغانهـا ی مسـلمان هزارهـا هـزار زن مسـلمان خود را در راه اسلام از دست داده ایم و نه یک بار بلکه بارهـا مـرد ها و زنها و حتی اطفال مسلمان و هموطن ما بخاطر حفظ حقوق نسل خویش و حقوق کشور و ملـت و ديـن خـویش سرکـوب شـده و بـه خاک و خون کشانیده شده اند ولی تو ای خـواهر مسـلمان و افغـان چرا یکی از آن روزها را بنام روز زن تجلیل نمیکنید ؟

و اگر از اسلام بگویم و بر گـردیم بـه ۱۴۰۰ سـال قبـل، در آن زمان مردم عـرب تولـد شـدن دختـر را در خانـه شـان شرم و ننـگ میپنداشتن و دختر خود را با دست خود زنده بگور میکردنـد تـا از بدنامی و سر خمی و شرمساری زمانه رهایی یابنـد، در آن زمـان زن آنقدر پست و مرتبه پایین داشت کـه حتـی پـدر آن دخـتر از شرم روی خود را از دیگران پنهان میکرد.

ولی زمانی که حضـرت محمـد صـلی الله علیـه و سـلم بـه پیـامبری مبعـوث شـد و خداونـد ایـن آیـه را در سوره بنی اسرائیل (اسراء) نـازل کـرد کـه ترجمـه آن چنین است :

و مکشـید اولاد خـود را از تـرس تنـگ دسـتی مـا روزی میدهیم ایشـان را و شـما را هـر آینـه کشـتن ایشـان هسـت گنـاه عظـیم بعـد از آن حقـوق واقعـی، عـزت وحرمـت و کرامت و مقام اصلی زن به او داده شد .

چرا ای خواهر مسلمان من، آنروزی که ایـن آیـه خداونـدی بـه خاطر حفظ مقام و حرمـت تـو نـازل شـد چـرا آنـروز را بنـام روز زن تجلیل نمیکنید؟

در حقیقت آنروز روز زن باید باشـد کـه تـو را از زنـده بگـور شدن نجات داد و مقام برابری با یک مرد را داد، آن روز روز جهـانی زن باید باشد و زن های قهرمان دین اسلام چـون حضـرت خدیجـه، صـدیقه عایشـه و... آنهـا بایـد ماننـد یـک الگـو بـرای شـما زنهـای مسـلمان باشـند نـه یـک زن کـافر آمریکـایی و نـه یـک تـاریخی نصرانیت.

تاکی و تا چه وقت باید از عادات و رسوم غیر اسلامی دیگران تقلید کنیم در حالی که ما دین کامل داریم، رسم و رسوم اسـلامی کامل داریم و خداوند هیچ کمبودی در این دیـن نگذاشـته کـه مـا کمبودی احساس کنیم و ناچار بـه رسـم و رسـوم مـذاهب و ادیـان دیگر رجوع کنـیم و گـاهی هشـت مـارچ را جشـن بگیـریم و گـاهی سال نو نصرانیت را جشن بگیریم .

ولی این کمبود و نادانی از خود مـا اسـت کـه بجـای اینکـه راه اسـلام را در پـیش گیـریم بـر عکـس چشـم و گـوش مـا بطـرف کشورهای اروپایی و آمریکایی است تا ببینیم که آنها بما چـه چیـزی را یاد میدهند تا همان را عمـل کنـیم و مهـم نیسـت کـه بـا دیـن و ایمان ما در تضاد باشد یا نه.

# د فکري سنګر ځوانانو

# بریمن یاست!!

لیکنه - جواد منهاج

) اِنَّ الَّـذِیْنَ كَفَـرُوْ یُنْفِقُـوْنَ اَمْـوَالَهُمْ لِیَصُـدُّوْ عَـنْ سَـبِیْلِ اللّٰهِ ; فَسَیُنْفِقُوْنَهَا ثُمَّ تَكُوْنُ عَلَیْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ یُغْلَبُوْنَ ; وَ الَّـذِیْنَ كَفَـرُوْ اِلَـی جَهَنَّمَ یُحْشَرُوْنَ • ) صورة الانفال / ( ۳۶)

ترجمه:

ببشکه کافران خپل مالونه خرچ کوي چې د الله ( جَلَّجَلَالُهُ) د لارې څخه خلک منع کړي ، نو دوی به مالونـه مصرف کـړي ، وروسته به د دوی لپاره غم وي ، وروسته بـه دوی مغلـوب شي ، او کافران به جهنم ته را جمع کړل شي .

د نړۍ مشرکان ، یهود او نصارا د خپلـو منـافقو بنـدګانو سره یو ځای لګیا دي چې د مؤمنانو د حق اواز چپ کـړي او یـوازې د دوی باطل اواز لوړ پاته شي.

سیکولران او ډیموکراتان پـه ټـول تـوان سره کوښـښ کـوي چې د مجاهدینو ږغ ساکت کړي ، دوی د دې کار لپـاره میلیونونـه ډالر مصرفوي ، دوی د مسلمانانو په جامه کې خپل غلامان هڅـوي چې د کفر باطل افکار تنشیر کړي او مسلمانان د اسـلام د حقیقـي دین څخه بې خبره وساتي - یا یې په خپل دین کې شکمن کړي.

همدا اوس د کافرانو او منافقانو له خوا پـه افغانسـتان کـې د بې شمېره ټلویزیونونو ، راډیوګانو ، کتابونو ، اخبـارونو ، جریـدو ، اونیزپاڼو ، ورځ پـاڼو ، فیسـبوکونو او پـه ټـولیزه توګـه شوشـل میډیا په مټ د مسلمان امّت د ګمراه کولو ( سیکولر - ډیمـوکرات ) لپاره په لوړه کچه کار روان دی . دوی عادي فیسبوک چلوونکي ( چې دوی ته خدمت وکړي ) ته د میاشتي ( ۷۰۰ ) ډالر ورکوي.

داچې د مؤمنانو سره د الله تعالی د نصرت وعده حقـه ده او د دغه دین ( اسـلام ) د حفاظـت وعـده الله تعـالی کړېـده ، د دوی ( کافرانو او ....... ) ټـول پلانونـه شـنډ دي ، د مـالونو مصرف یـې ضایع دی او په میډیایي سنګر کې بالکل خړ مخي او ناکـام دي او په اخرت کې به یې الله ( ج ) جهنم ته بوزي.

د اسلام د اواز اوچتولو لپاره رب العزت داسې ځوانـان پیـدا کړي دي چې کرۍ ورځ او شپه د اسلام دښمن ته د فکري سـنګر په مرچلونو کې ناست دي.

د کـافرانو او د هغـوی د مزدورانـو نیوکـو او شـکوکو تـه جواب وایي ، د حق اواز اوچتوي ، د نړۍ ویده اولسونه ویښوي ، مسلمانانو ته د خپل دین ( اسلام ) حقانیت او عزمت ښـیې او ټـول امت د مؤمنانو له فتوحاتو خبروي.

دغسې ځوانان په نني عصر کې د امت لـویې هسـتۍ دي ، د امت د دفاع په پار یوازې د دوی سینې سپر دي ، د دغـو ځوانـانو قدر او ساتنه د ټولو مسلمانانو وجیبـه ده . او د تـاریخ پـه حافظـه کې به دوی د ستورو غونډې ثبت شي.

# يوه ورځ به رښتيا شي!!



**عابـد**

داځـويم وار دی چـې پـه مطبوعـاتو کـې دښـاغلي اسـتاد سياف دمـرګ خـبر راځـي، او ډېـر ځـله دعاجـل عـلاج لپـاره لـه هيواده بهر بيول کيږي، کله يې دزړه اوکله يـې دعصبي حملې داحتمال حدس وشي، تـردې چې پـه خوالـه رسـنيويې دبسـتر عکسـونه راشي اوپلويـانو يـې د دعـا غوښـتنه ورتـه کـړې وي. يوځل يې داځرک هـم لګېدلی و، چـې د وراره لـه لاسـه بـه وژل کيږي، له دې وېـرې يـې امنيتـي کـړۍ دومـره تنګـه شـوه چې خپلو اولادونو يې هم په اسانه ورسره نه شوای ليدلای .

هـو! داورځ بـه خامخـا راځـي او يـو وخـت بـه رښـتيا هـم واورېدل شي چې استاد سياف مړ يا ووژل شو.

دابه رښتيا شي، خو مونږ ته به دې څه پاته شي ؟!

دهغه جهادي ستررهبر دکردار وروسـتی انجـام بـه څنګـه ارزوو چې په ليدو او مصافحه بـه يـې زمـونږه مسلمانو افغانـانو اوسپېڅلو مجاهدينو ځان دثواب او اجر مستحق ګاڼه.

" دعـوت او جهـاد" دا دوه کلمـې وې چـې خلکـو رښـتيا وبللې، عرب اوعجم داسې درباندې راټول شول، چې داسـلامي فکر دپالنې مکتب يې يواځې ستا تنظيم وباله اوبس،

ماتـه دجهـاد، مبـارزې، خپلـواکۍ او اسـتقلال ذهنيـت او احساس تا راکړی و، ستا د وينا له يوه يـوه ټکـی سره بـه زه پـه وجد کې راتلم، احساس به مې به څپو او جذبات به مې له کـابو وتل ، ځکه ستا هره وينا به دقرآن ايت او دپيغمبرصلی الله عليه وسلم نبوي حديث و.

دشـهيدپه قـبر، دجـدی او ثـور پـه مناسـبت غونـډو، سـيمينارونو، دځوانـانو ټولنـو، اخترونـو، خاصـو، عـامو اوپـه هرمناسبت راټولو افغانانوته په ويناکې به دې هغه څه ويل، چې نن له هغو ټولو سره په ټکر کې يې !!!.

هيڅ راز تاويل او حيله ورته نـه شـم جـوړولای!! زه لا پـه هماغه درېځ يـم اودمـرګ ترحده دې پـرې درولـی وم، زمـا ډېـر ملګري دې له دغه حده ور واړول او نن هغوی نشته، ستا دنن کردار به دهغوی روح څومره ځوروي. ماچې ستا له دعوت نه په تأثرهغوی تاتـه دومـره تـابع کـړي وو، چـې سـتاپه يـوه وينـايې ځانونه قربان کړل، نن ورته ډېـر خجـل او شرمنـده يـم، هغـوی چې ستا په قومانده او رهبري کې داسلامي نظام لپاره شهيدان شول او دومره تنازل ته دې هم پرېنښـودل چـې لـه هغوافغانـانو سره ګډحکومت جـوړکړي چـې کمونسـتان نـه وو، خوګنـاه يـې يواځې په غرب کې اوسېدل و ، دنن په کـردار بـه دې، څـه ډول قناعت ورکړې؟ ايا ددنيا کلامي سحر بـه دې هغـوی پـه عقبـی کې هم قانع کړي ؟!!

نـني يرغلګـر خوهماغـه امريکايـان دي چـې دغـرب د هـر شرارت پـه ذکـر کـې بـه دې پـه امريکايـانو جلاتصريـح کولـه،

دهغـوی شـیطنت، اسـلام دښـمني او دجهـاد لـه ثمـرې سره دهغوی په کلک مخالفت کې به دې وینـا دومـره اوږده اوجذابـه شوه چې له هر لورې به دتکبیرنارې پورتـه شـوې اوغونـډې بـه جلا رونق پیداکړ.

خونن ! خونن چې څـه پېښ دي اودامریکایـانو لـه عـامو افـرادو سره نـه! بلکـې دهغـوی دجنګـي قومانـدانانو اوجنرالانـو سره دې چې کوم خواږه مجلسونه اوملایمې ناستې دي° ډېـرې څـورونکې، حسرتناکې، دشریعت لـه نصوصوسره پـه ټکـر، دایمان له خطر سره تړلې، دعهد او وفا له رڼاوو لرې اودجفا لـه تیـارو ډېـرې ډکـې ناسـتې دي ، پـه تېـره بیـا هغـه ناسـتې اومجلسونه چې دخپلو پلانونو پـه جوړولـوکې لـه تـاسره مشوره کوي او راز درسره شریکوي !!!

هغـه وحشـتونه چـې امریکایـان یـې پـه مظلومـو افغانـانو ترسره کوي، له هغووحشتونو سره پـه پرتلـه کـې څـه دربنـکاره کوي چې روسانو په افغانانو ترسره کول ...؟؟

کوم فکري او عقیدوي تړاو یې ترمنځ درتـه نـه ښـکاري ؟ چې په اسلام دښمنۍ یې ونوموې او ووایـې چـې داپـه افغانـانو بې رحمه بمبارونه او راز راز وحشتونه ° یواځې داسـلام پـه ګناه دي اوبس. ! که ستا دښـمني لـه طالبـانوسره وي چـې دهغـوی دښـمني لـه امریکایـانو او دهغـوی لـه برېڅـو سره ده، نـو دغـه مظلوم افغانان دهغوی وحشت او ظلم ته په کوم شرعـي مجـوز پرېږدې او دنن جهاد جهاد نه بولې ؟!!

" کاشـکې ای شـهیده! چـې یـو وارې خـو تـاسره راپورتـه کړی وای او هغه رهبر دې چې تاپې پـه قیـادت کـې داسـلامي نظام داحیاء لپـاره لـه کفـاروسره جهاد کـاوه، نـن دې دهماغـو کفارو په غېږ کې لیدلای وای ...."

دریغه ! دریغه!

ستادنوم او حـال لـه یـاده سره مـې ستاتولې وینـاوې پـه غوږوکې ازانګه کوي او یوه یوه مې ترمخ تیریږي !

"... داهیـواد دمجاهـد اوحکومـت یـې دمجاهـد حـق ده! هغوی چې په غرب کې ناست او ږیـرې چپـه اوراسـته خرېـې، هیڅکله ددې حق نه لري چې په دې مجاهدملت باداري وکـړي ..."

"ورونو! ګورئ چې په دې وروستیوشپېوکې مو پښـې ونـه ښـوییږي، پـام چـې پـه آخرکـې دشـهیدانو لـه وینـو ډک جـام درڅخـه تـوی نـه شي، دا پـه مطبوعـاتو اورادیوګـانوکې چـې د مؤتلف اوګډحکومت خبرې کیـږي، داټـولې دغـرب دسیسـه ده غواړي چې دجهاد ثمره له خاورو سره خاورې کړي..."

"او خلکو! تاسې ووایـئ! دظاهرشاه پـه حکومـت کـې بـه چې عسکري ته خلک نیول کېدل، په عامو افغانانو به یـې ږیـره خرېیله که نه ؟! خو په سیک او هندو یې ږیره خرېیلې ؟؟"

"که په هیواد کې دیوه ساعت لپاره د روسانو په پاته کېدو راضي شو، نو څومره فجایع چې په دې یوه ساعت کـې تـرسره کېږي° په ټولوکې به ورسره شریک یو"

" أیُنقصُ الدّین و اناحی ... دین ته به نقصان رسـیږی او زه به ژوندی یم ؟!"

دهجـرت اوجهـاد پـه دیـار اوکـلي، دشـهیدانو پـه هـدیره، لیسه، مدرسه، پوهنتون، بدرغونډ، سیاسي مهمانخانه، ډیپـو، مرکزي دفتر، سـیاسي او تربیـوي سـیمناورونو، دشـهیدانو پـه فاتحواو بالاخره په هره اجتماع کې بـه دې همـداوینـاوه، دجهاد فضـیلتونه اودعربـو مجاهـدینو پـه اتلولیـو بـه دې ژبـه لمـده وه، دوینا په منځ کې به دې هغوی ته خبره متوجـه کـړه ... وأتوجهُ خطـابی الـی الـذین هـم ترکـوا بلادهـم واولادهـم وشـارکونا فـی الجهاد بدمائهم ...

ډېر دحیرانتیـا ځـای خـو دادی چـې جهـاد منـې او لا اوس هم ځان مجاهد بولې، خو له امریکایانو سره جګړه چې دصلیبي جګړې په نامه دلته راغلې° جهاد نه بولې ؟!



# ما امتي هستيم كه

م منير

امیرش می گوید:

"خوار و ذلیل بـودیم امـا خداونـد متعـال مـا را بواسـطه اسلام عزت بخشید، پس اگر عـزت را در غیـر اسـلام جسـتجو کنیم خوار و ذلیلمان می گرداند."

و سربازش می گوید:

"خداونـد مـا را برانگیخـت تـا هـرکس کـه بخواهـد را از عبادت بندگان بسوی عبادت خداوند رحمان و از تنگنای دنیا به فراخنای آن، و از ستم ادیان به عدالت اسلام خارج سازیم."

و عالمش می گوید:

"دشمنانم چه کاری می توانند با من بکنند؟ به هر جا بـروم باغ و بوستانم در سینه ام است و از من جدا نمی شود! براستی که زندانم، خلوت کردن (برای عبادت) و کشته شدنم، شـهادت و بیرون راندنم از سرزمینم، سیر و سیاحت است."

و شاعرش می گوید:

پدرم اسلام است و جز آن پدری نـدارم، اگـر کـه آنهـا بـه قیس و تمیم افتخار کنند.

و پیامبرش می فرماید:

"من مبعوث گشته ام تا اخلاق نیک را به کمال برسانم."

و پروردگارش جل جلاله می فرماید:

"شما بهترین امتی هستید که به سود انسانها خـارج شـده اید."

بیشترآشناشویم باپیامبران الهی:

)حضرت آدم (ع) - لقب : خلیفـه الله – کنیـه : ابوالبشر- مدت عمر: ۹۳۰ سال(

)حضرت نوح (ع) - لقب : نبی الله – پـدر: لمـک - مـادر : قینوش – مدت عمر : ۱۲۰۰ سال(

)حضرت هود (ع) - پدر : شالخ -مادر : بکیه – مدت عمـر :٤٦٠ سال - نام قوم :عاد(

)حضرت صالح (ع) - پدر: جابر- مدت عمـر: ۲۸۰ سـال – نام قوم : ثمود - آیت ( نشانه ) : ناقه(

)حضرت ابراهیم (ع) - تولد : شـهر اور در کشـور بابـل - پدر : تارخ -عمو : آزر - مادر : ورقه - لقب : خلیل الله - کتاب : صحف - مدت عمر ۱۷۵ سال - حاکم زمان : نمرود - آیت : سرد و گلستان شدن آتش - اقدام : تجدید بنای کعبـه - محـل دفـن : فلسطین).

(حضرت اسماعیل (ع) پدر : ابراهیم (ع) - مادر : هاجر - لقب : ذبیح الله - مدت عمر : ۱۳۷ سال)

(حضرت اسحاق (ع) پدر : ابراهیم (ع) - مادر : ساره - لقب : وجیه الله - مدت عمر : ۱۸۰ سال - محل دفن : فلسطین)

)حضرت لوط (ع) - پدر : هاران - مادر : ورقه - مدت عمر : ۸۰ سال - نام قوم : لوط - محل دفن : فلسطین(

(حضرت یعقوب (ع) - پدر : اسحاق -مادر : رفقه - مدت عمر : ۱۴۷ سال - محل دفن : فلسطین(

)حضرت یوسف (ع) - پدر : یعقوب - مادر : راحیل -لقب :صدیق - مدت عمر ۱۲۰ سال - محل دفن : فلسطین(

حضرت شعیب (ع) - پدر: صیفون - مادر : میکاء - لقب : خطیب الانبیاء - مدت عمر : ۲۴۲ - محل دفن : فلسطین(

)حضرت ایوب (ع) - پدر : آموص - مدت عمر : ۱۴۰ سال - محل دفن : بلاد حوران(

)حضرت موسی (ع) - تولد : مصر - پدر : عمران -مادر : یوکابد - لقب : کلیم الله - کتاب : تورات - نام قوم : بنی اسراییل - مدت عمر : ۱۲۰ سال - حاکم زمان : فرعون (رامسس دوم ) - آیات : عصاوید البیضاء - محل دفن : فلسطین(

)حضرت هارون (ع) - پدرعمران - مادر : یوکابد - مدت عمر : ۱۲۳ سال - محل دفن : طور سینا (مصر.(

)حضرت داوود (ع) - پدر : ایشیء- لقب : نبی الله الحاکم - مدت عمر : ۱۰۰ سال - محل دفن : فلسطین(

)حضرت سلیمان (ع) - پدر : داوود - مادر : برسبا - لقب : حشمت الله - مدت عمر : ۵۳ سال - محل دفن : فلسطین(

)حضرت الیاس (ع) - پدر : یاسین - مادر : ام حکیم - مدت عمر : ۲۲ سال(



)حضرت الیسع (ع) - پدر : اخطوب - مدت عمر : ۷۵ سال - محل دفن : دمشق(شام.(

)حضرت یونس (ع) - پدر : متی - مادر : تنجیس - لقب : ذوالنون - مدت عمر : ۴۰ سال - محل دفن :کوفه (عراق.(

)حضرت ذوالکفل ( حزقیل )(ع) - پدر : ادریم - مدت عمر : ۷۵ سال - محل دفن : بین کوفه وحله (عراق.(

)حضرت زکریا (ع) - پدر : برخیاء - مدت عمر: ۱۱۵ سا ل - محل دفن : بیت المقدس.(

)حضرت یحیی (ع) پدر : زکریا - مادر: عیشاء - مدت عمر : ۳۰ سال - محل دفن : دمشق ( مسجد اموی.(

)حضرت عیسی (ع) - مادر: مریم - لقب : مسیح ( روح الله) - آیات : در گهواره سخن گفتن ( انا عبد الله ) - شفا دادن بیماران و زنده کردن مردگان به امر خدا - کتاب : انجیل - مدت عمر : ۳۳ سال - آن حضرت به آسمان عروج کرد(.

(حضرت محمد ﷺ -پدر: عبدالله - مادر : آمنه بنت وهب - لقب : رسول الله ( خاتم الانبیاء ) - آیات : شق القمر کردن و به معراج رفتن و قرآن کریم - کتاب : قرآن کریم - دین : اسلام - رحلت : ۱۲ ربیع الاول سال۱۱ هجری قمری (مدینه منوره) در سن ٦۳ سالگی.



# د اسلامي امارت د مرکزي نظامي کميسون غړی او مخابراتو کمېسيون مسؤل محــترم مولــوي جنت گل:

## "شهيد ملاعبدالسلام (تقبله الله)، مدبر ،صابر، متدين ،مطيع او د ولس په حق کې خيرخوا اوخواخوږی شخصيت وو"

که په عام ولس داشغالګرو دبمبار ويره نـه وي مجاهـدين دکنـدوز ښـار دنيولو لپاره بشپړ چمتوالی لري او د مشرانو هدايت ته منتظردي.

مرکه کوونکی : خبير احمد مجاهد

(الحمدلله وکفی وسلام علی عباده الذين اصطفی امابعـد فاعوذبالله من الشيطن الرجيم بسـم الله الـرحمن الـرحيم مـن المؤمنين رجال صدقوا ما عاهدوا الله عليه فمـنهم مـن قـضی نحبه ومـنهم مـن ينتظـر ومـا بـدلوا تبـديلا ). (سـورة الاحـزاب آيت:۲۳) .

- کندوز دافغانستان دشمال ختيځ په ولاياتو کې يـومهم او مرکـزي ولايـت دی، چـې ددوو مهمـو سرحـدي ولايتونـو (تخار او بدخشان) لاره هم په همدې ولايت ده .

- بل داچې کنـدوز هغـه ولايـت دی چـې افغانسـتان لـه مرکزي آسيا دهيوادونو څخه تاجکستان سره دشيرخان بندر له لاره وصلوي، او ډېر زراعتي او سرسبز ولايـت دی، او خلـک يې نسبتاً شتماً دي .

- اکثر خلک يې مخلصين، مجاهدين، امارت اسلامي تـه وفـادار خلـک دي، همـدا وجـه ده چـې دجهـادي بهـير پـه ګرندي والي کې ډېره مهمه مرسته کوي .

اوله پوښتنه : څرنګه چې داسـلامي امـارت نوميـالی مشر-دکندوز فاتح شهيد ملاعبدالسـلام بريـالي تقبلـه الله سره تاسې نيزدې او له ډېرې مودې ملګرتيا درلوده، که په خپل برداشت او تحليل درنولوستونکو ته شهيد ملاعبدالسلام تقبله الله معرفي کړئ چې دکوم ډول نيکو خصـلتونو او ځانګرتيـاوو خاونـد او ښتن ؤو؟

ځواب : دشهيدحاجي ملاعبدالسلام بريالي تقبلـه الله پـه ډېرو اوصافو حسنه ؤ موصـوف ؤ لکـه : حلـم، تقـوی، اخـلاق حسنه، مطيع ، صابر، مدبر، شجاع، زيرک زړه سـواند او امـارت اسلامي ته وفـادار، سـخي، ويښ او بيـدار، لـه ملګـرو سره ښـه تعلـق سـاتونکی، او دملګـرو هروخـت پوښـتونکونکئ، زيـات زحمت ويستونکی او پـه دينـي امـورو کـې دډېـر جهدوجهـد خاوند ؤ خصوصاً په جهادي امورو کې .

دوهمه پوښتنه : دکنـدوز دوه ځلـه دمجاهـدينو پـه لاس فتحه شو او له شک پرته چـې دمجاهـدينو دعمليـاتو قومنـده دشهيدملاعبدالسلام اخند ترغاړې وه، ستاسې په اند هغـه کـوم خاص تکتيکونه او خصوصيات ؤو چې نوموړي کـارول او الله تعـالی پـرې تـاريخي اثـرات مرتبـول او شـانداري فتحـې بـه دمجاهدينو په نصيب کېدلې؟

ځواب : ماخوتاسې ته عرض وکړچـې شهيدملاعبدالسـلام بريالی رحمـه الله ، مـدبر، شجاع ، زيـرک اوداسـلامي امـارت اهدافوتــه وفادارشخصــيت وو ، ملګــري يــې هــم پــه همدغومواصفاتواراســته غازيــان اودالله دلارې ســپاهيان وو

اوان شاالله تعالی دي ، نوموړي په ښتياچې دکندوز دفتحې کولولپاره کوم جهادي پلان دملګروپه مشوره ترتیب اوپه کار واچاو، څکه په ډیرکم مصرف ، لږو تلفاتواودخوساعتونوپه اوږدوکې ترسره شونوله شک پرته چې ټوله دنیایې حیرانه اوپه خاص ډول اشغالګر له تاریخي رسوایي اوشرمندګی سره مخ کړل ، امریکا، ناټواودکابل مزدور رژیم دکندوز دساتلواوژغورلولپاره له شلوزروزیات قوتونه درلودل په داسې حال کې چې دمجاهدینوشمیره ۲ زروتنوته هم نه رسیدله ، ددښمن وسلې ،هوایي ځواک اوجنګي تجهیزاتوسره خودمجاهدینووسلې اواکمالات هیڅکله دپرتلې وړنه وو ، خوبیاهم چې الله تعالی مجاهدین غالب اوفاتح وګرځول په ړومبي قدم کې بائیدالله تعالی کامل نصرت اومرسته یې وبلولاوپه دوهم قدم کې دشهیدملاعبدالسلام بریالي تقلبه الله غوره قومنده اوموثرتدبیرېې بائید وبولو .



نورخودجهاداسرار دي دکندوز دفتحې ټول تکتیکونه دلته ووایوممکن مکار دښمن به استفاده ورنه وکړي نوپرځای یې پرېږدو ، ولې لاندې څوعمده ټکي دیادولو وړبولم ترڅو افغانان اومجاهدین پرې اګاه شي ، چې اسلامي امارت مسؤلین ترکومه بریده دجهاد داصلي روح اودیني مسیرپیروي کوي اوخپل ځان اوماتحت دهغه پابندبولي ، چې له هغوڅخه خپله دمجاهدینودبریاوو اومعنوي تکتیکونورمز معلومیږي.

مونږ دکندوز له ړومبي فتحې وړاندې مجاهدینوته ۱۴ نکات ورکړل اوترې مووغوښتل چې په جدي ډول یې به یې عملي کوي :

۱ ـ دخپلوامیرانوبه مشروع اطاعت کوی ـ ۲ ـ دجنګ په مهال به دکامل صبرمظاهره کوی ـ ۳ـ ددښمن سره دمخامخ کیدوپه صورت کې به دالله ذکر زیات کوی ـ۴ـ دخلکودسر، مال اوناموس حفاظت به په ټینګه کوی ـ ۵ ـ دسپین ږیرو، ماشومانو اوښځوله وژلوبه ځان ساتی ـ ٦ ـ اسیران چې په لاس درشي نه به یې وژنی ـ ۷ ـ هغه کس به هم نه وژنی چې امان مو ورکړی وي ـ ۸ـ له دښمن څخه ترلاسه کیدونکي وسائل به نه تلف کوی ـ ۹ـ عام المنفعه ځایونه به نه وړانوی ـ ۱۰ ـ دخلکودکورونو، دوکانونواومارکیټونوساتنه به کوی ـ ۱۱ـ دمیرمیوله استعمال سره به احتیاط کوی ، بې له اړتیا به یې نه مصرفوی ـ ۱۲ ـ دانداخت اودوسلودکارولوپه مهال به دقت کوی ترڅوعام ولس اوخپل ملګري زیان ونه ویني ـ ۱۳ ـ دفتحې په مهال به د( الله اکبر ) دتکبیرزمزي وایی ـ ۱۴ ـ اوچې کوم ځای مو فتحه کاوه الله تعالی ته به دشکر اوتضرع سجدې لګوی .

که څه هم دکندوز دوهمې فتحې له اولې فتحې سره په تعرضي تکتیکونوکې دومره زیات توپیر نه درلودلو .

دکندوز په دوهمه فتحه کې زه موجود نه وُم البته دکندوز ددوهمې فتحې او دعملیاتو په ارتباط ماله شهید ملاعبدالسلام اخند څخه پوښتنه وکړله هغه راته وویل چې دښمن دکندوز ولایت په ولسوالیو عملیاتو شروع کړې ووُ او له ښار نه اکثره نظامي قواوې ولسوالیو طرف ته تللې وې، نو له همدې موقعې نه په استفادې سره مونږ په ښار باندې حمله وکړله او دمجاهدینو دوهم پلان دومره وسیع نه ؤ څومره چې اول پلان وسیع ؤ بلکه دا عملیاتو ددښمن دعملیاتو دشنډولو

په خاطر ترسره شول چې لله الحمد دمجاهدینوپه لاس دکندوز ښار یوځل بیا فتحه شو، دښمن چې کوم عملیاتو دکندوز ولایت په ولسوالیو کې پیل کړي ؤو هغه ټول یې له ناکامیو سره مخ شول .

دریمه پوښتنه : کله چې کندوز فتحه شو دشهید ملاعبدالسلام تقبله الله به زیات ترکیز او توصیې مجاهدینو ته څه وې ؟

ځواب : مونږ داخبرې په کلني راپور کې هم لیکلې دي له فتحې وروسته دشهید ملاعبدالسلام تقبله الله زیاتره ترکیز او نصب العین دعام ولس : سر، مال، ابرو او عزت ساتل او پاملرنه، دعام المنفعه اماکنو، مراکزو ، او دملي شتمنیو پوره پوره حفاظت او عوام الناس سره ښه برخورد او چلند او دیني شعائرو ته خاصه توجه او دا معلومات اکثره مجاهدینو او عام ولس ته شته .

څلورمه پوښتنه : له ولس سره دشهید ملاعبدالسلام اخند تقبله الله دچلند په باب که څه خاطره راته ووایې مثلاً کله به چې ورته ثابته شوه چې دهغه ترلاس لاندې کومه سیمه کې له عامو خلکو سره زیاتی شوی په دغه وخت کې به یې عکس العمل څه ؤ؟

ځواب : حاجي ملاعبدالسلام اخند تقبله الله دعام ولس سره ډیر ښه سلوک کولو او دولس دغمونو، دردنو څخه باخبره شخص ؤ، دمظلومانو پوښتنه به یې ډیره جدي کوله اوکوشش به یې کولو چې دعام ولس سره ظلم او زیاتی ونشي-بلکې رحم ورباندې وشي اوکه چیرته به په چا ظلم وشو او ده ته به یې ظلم ثابت شو چې واقعاً ظلم شوی دی نو عجلتاً به یې اقدام کولو .

مثلاً : دکندوز مرکز کې مجاهدینو دیومسجد په حجره کې مرکزنیولی ؤ خلکو دمجاهدینو په توسط حاجي ملاعبدالسلام تقبله الله ته شکایت ورسولو چې زمونږ دبچیانو درسونه قضا شوي دي ځکه چې حجره مجاهدینو نیولې ده، نو حاجي ملاعبدالسلام اخند تقبله الله خلکو ته وویل چې دنن ورزې دماذیگر وروسته به طالبان نه وي هماغه ؤ چې ملاعبدالسلام اخند تقبله الله دموضوع تحقیق وکړو او خبره ترحقیقته ورسیده نو سمدستي یې قومنده وکړه چې حجره خالي کړئ او بل ځای ته مرکز انتقال کړئ دهمدې ورځې دماذیگر نه مخکې مخکې طالبان له دې ساحې څخه لاړل او حجره یې خالي کړه .

پنځمه پوښتنه : داچې ملاعبدالسلام اخند تقبله الله داشغالګرو له لورې دشهادت سترې موخې ته ورسیده، شک نشته چې ضائعه او تشه یې لویه ده، تاسې هغه جهادي بهیر او سنگرونه چې دشهید ملاعبدالسلام تقبله الله په هڅو او ابتکارونو ودان او روان ؤو راتلونکي یې څنګه ارزیابي کوئ، په خاص ډول امریکایانو او دکابل لاسپوځي رژیم چارواکو ویلي چې دملاعبدالسلام اخند تقبله الله له مینځه تللو سره طالبان بیا چانس نلري چې کندوز ونیسي؟

ځواب : زمونږ په اند او برداشت او هغه تجربه چې مونږ کندوز کې وخت تیرکړې دشهید حاجي ملاعبدالسلام اخندتقبله الله دتاریخي کارنامو او جهادي چټکتیا اولاس ته راوړنو حفاظت او پرمخ وړلې یې دوه جهته لري :

اول جهت یې نوی قیادت او دکندوز ترمجاهدینو پورې تعلق نیسي او دوهم دامارت اسلامي مشران خصوصاً مشرتابه پورې مربوط کیږي .

اول جهت چې نوی قیادت دی : چې عبارت دی دکندوز دجهادي مسؤل (ملامحمداخند) څخه دا نوی قیادت دشهیدملاعبدالسلام اخندتقبله الله په وصیت او دملګرو په اتفاق او دامارت اسلامي دمشرتابه په تائید سره شوی .

لله الحمد چې نوی مسؤل چې ملامحمداخند دی دعالي صفاتو خاوند دی، لکه تقوی، شجاعت، عدالت،

عفت، او کاري تجربه ځکه چې ددېنه دوځلې مخکې دبغلان ولایت جهادي مسؤلیت هم دده ترغاړې ؤ یو ځل مخکې له بنده او بل ځل دبند څخه وروسته .

او کله چې حاجي ملاعبدالسلام اخند تقبله الله دوهم ځل دکندوز لپاره دامارت اسلامي دمشرتابه لخوا مسؤل وټاکل شو نو دده معاون وثیق دشهادت وروسته همدا ملامحمداخند دامارت اسلامي دمشرتابه لخوا نه دشهیدملاعبدالسلام اخند تقبله الله معاون او مرستیال والي په حیث وټاکل شو،او دملاعبدالسلام اخند تقبله الله دملګرو سرپرستي هم دملامحمداخند په ذمه ده .

دوهم جهت دادی چې دامارت اسلامي مشران خصوصاً مشرتابه لکه څرنګه چې دشهیدملاعبدالسلام اخند تقبله الله په وخت کې کندوز ته متوجې ؤ باید څو چنده لازیات ورمتوجې شي، هم په سیاسي لحاظ ، هم په اقتصادي لحاظ او هم په نظامي او لوجستګي لحاظ .

الله مه کړه که داسې خلک پیدا شي چې په شمال کې خصوصاً دکندوز ولایت دنظم، وحدت او اتفاق دګډوډۍ کوشش وکړي او فاسد اغراض ولري باید دامارت اسلامي دمشرانو لخوا دداسې خلکو جدي مخنیوی وشي .

او بل یو دپام وړ نظر دادی : چې کندوز ولایت په شمالي ولایاتو کې یو مرکزي اومحوري حیثیت لري دکندوز ساتنه او اکمال دټول شمال دمجاهدینو لپاره ډیر مثبت اثرات لري .

او پاتې شو ددښمن تبلیغات : نو ددښمن تبلیغات بې ځایه دي الحمدلله مجاهدین قوي دي او دکندوز ښار په (۱ یونیم کلومیتری) کې اوسیږي ګشت ګذار او ګزمې کوي او برحاله مرکزنه لري، کله چې هم وغواړي په ښار دبرید کولو او دښار دنیول جوګه دي دالله تعالی په نصرت انشاء الله تعالی،

خو دا دوه ځله چې دکندوز ښار نیول شوی، نو دښمن په عام ولس بې رحمه او ړندې بمباری کړې او عام ولس ته یې ځاني او مالي تاوانونه اړولي دي نو ځکه دنظامي کمیسیون دمشرتابه لخوا مجاهدینو ته دښار څخه دوتلو هدایت شوئ، هرکله چې مشرتابه دا اړینه وبللـه مجاهدین په هره لحظه دخپل مشر تابه اوامرو ته لبیک او اجراءاتو تیار دي .

شپږم پوښتنه : په پای کې که دملاعبدالسلام تقبله الله دکورنۍ په اړه معلومات راکړئ چې ترشاپې څوک پاتې دي بچیان یې څو دي او دځامنو نومونه یې که راته ووایې ؟



شهید ملاعبدالسلام اخند تقبله الله دمحمدسرور ځوي دنن (۱٤۳۸هـ ق) نه اوه دیرش (۳۷) کاله مخکې دکندوز ولایت ددشت ارچي ولسوالۍ دنهر کنه سیمه کې دحاجي سرفرازکلي په یوه دنیداره او متدینه او غریبه کورنۍ کې دې فاني دنیاته سترګې غړولې وې .

دشهید ملاعبدالسلام اخندتقبله الله نه علاوه شپږ نور ورونه (عبدالمنان، سعیدالرحمن،فضل الرحمن،قومندان حاجي کلیم الله، حبیب الرحمن،ملاسخي الرحمن) درلودل.

چې له جملې نه یې یو(ملاسخي الرحمن) دده دبندپه وخت کې په شهادت رسیدلي ؤ او یوبل ورور (سعیدالرحمن) دده سره دشهادت په بریدکې زخمي شوي دی .

او دنوموړي پلار (محمدسرور) دده دشهادت نه څه موده مخکې له دې فاني دنیا څخه سترګې پټې کړې .

او شهیدملاعبدالسلام اخند تقبله الله ترشا دوه ودونه او دوه بچیانې پرېښې دي چې نارینه اولاد نه لري .

ومن الله التوفیق

# خبر او ځرک

م عبید

خبر : په ۴۰۰ بسترروغتون کې بریدکونکوپه نورووژنوسربیره ددفاع اوکورنیوچاروروزارتونو د۴ جګپوروجنرالانومری هم پرې کړي.

ځرک: همدغه علت وو چې دناتومفتي (سیاف) تیارنشوچې نوموړي روغتون کې دې درمنله وشي، وای ژوندی به مې وروری خوسرپریکړی به مې ترینه وباسی!!

خبر : حکمتیار وراندیزکړی چې کابل ښارته دځمکې له لارې داخلیږي اوشاوخوا ۱۰۰ کلومتره مزل به کوي :

ځرک: ښه وراندیزدی تراوسه له تورلیست څخه دحکمتیارصیب دسپنیدورسمي مکتوب هم له ملګروملتونوندی رارسیدلی ترڅه مودي پوري له هوایي سیراوسوارلی نه پرهیزپه کاردی ، داسې نه چې امریکایان یې خلاف ورزي وبولي اوفاجعه رامنځته نکړي.

دوستم : از تفرقه‌اندازی اجتناب کنید.

ځرک: بخاطریکه جنبش ملی به مبنای وحدت ملی تشکیل وتاسیس شده وکشتارجمعی که در(دشت لیلی) ودیګرنقاط کشور صورت ګرفت علت ایشان هویدااست تابین تفرقه اندازی قلع وقمع ګردد

اتمر : دلندن په ناسته کې د افغانستان او پاکستان ترمنځ د سیاسي کړکېچ په اړه خبرې کېږي

ځرک : عجیب اوغریب ،اتمر په هندوستان کې دجنګ په تیزي اوتودولو بحث کوي اوپه لندن کې په سیاسي کړکیچ ، اوهمدالندن وو چې افغانستان ته یې جنګ ، تباهي اوناورینونه راوړل اوډبلیوبوش نه دوه ګزه وړاندې ( بلیر) دجنګ دګرمولوګامونه اخیستل .

خبر : د ځینو استازو ساتونکي له چرس او چلم سره د ملي شورا انګر ته رادننه کېږي "

ځرک : نودغه اردو خوجوړه ده له چرسیانواوبنګیانو، تاسې رښتیاوایی چې کرزي چرس نه دوړول اومفکر هره شپه ( ودکا) په سرنه اړوي !!

خبر : امرخېل: ښځینه قشر-زده کړو ته نه پرېښودل، د افغاني غیرت خلاف عمل دی

ځرک : شک نشته چې زدکړې دښځوحق دی خوچې ماحول ورته برابروي ، خواتمرصیب داونه وئیل چې له امریکایانواوغربیانوسره دافغاني پیغلواومیرمنوکارکول اودهغوئ سکرترې جوړیدل خوبه دافغاني غیرت خلاف عمل نه وي ؟

خبر: د کندهار والي د راتلونکې شنبې ورځ خپلې دندې ته راستنېږي.



ځرک : والي صاب ورځ دقیقه مه ښیه، امنیه قومندان درته چـړې تیري کړي اوله خولي سره احتیـاط کـوه ترڅونـاویلي حقـائیق درنـه سرنشي .

خبر :ننګرهار والي ویاند : په ننګرهار کې درې امریکایي سرتېري برسیرن ټپیان شوي.

ځـرک : ټانـګ خـویې لولپـه پروت وو ، فکـر کـوو امریکـایي عسـکرله خپلوفـولادي ټانګونوهم کلک اومضبوط دي چې ټانګ ټـوکري ټـوکري کیږي ، خوعسکر برسیرن ټپونه اخلي .

خبر : ځانګړو ځواکونو په هلمند کې د طالبـانو لـه زندان نه ۳۲ تنه خوشي کړي.

ځرک : هو دچرسي اردو ، ځانګړو ځواکونو دخاصـو عملیاتوپه ترڅ کې هغه پوډریان چې په یوه شاړه کلاکـې له ډیره وخته جمع وو هغوی یې کډه اوتیت پرک یې کړل .

خبر : داعش په لوګر کې د ځوانانو د جذب په موخـه تبلیغاتي شپې پاڼې خپرې کړې

ځرک : په دې ورستیوکې خوطالبانو هغـه یـو ډلـه افرادنیولي وو چې دداعـش پـاڼي یـې ویشـلي اوټـومبلي ،هغوئ په خپلوځرګندونوکې ویلي چې پاڼي دامنیـت مـلي له لوري راکړل شوي اوهرکس ته یې لس لـس زره افغـانی هم راکړي .

خبر: کشاف: په افغانسـتان کـې د جهـاد فتـوا لـه اسلامه نا خبره مفتیان ورکوي

ځرک : له ډالرو ناخبره اوکه له اسلامه ؟ اسـلام خـو وایي چې مسلمان ته روانده چې دکفر اویرغلګـرو تـرچتر اوحکم لاندي ژوندوکړي ، کشاف صاب داووایـه چـې پـه افغانســتان کــې اشرف غنــي واکمــن دی کــه ټرمــپ ، دافغانستان فضـا اوځمکـه دامریکاپـه اختیـارکې ده کـه داشرف غني ، اشرف غني اوډاکټر عبدالله ، افغانانو ټـاکلي که جان کیري ؟

خبر : سرخط؛ پاکسـتان د بې‌اسـنادو افغانـانو پـه منځ کې ځانمرګي را "ډیپورټ" کوي

ځرک : ځوی مو ستر شه په همـدې منطـق ، نـوچې پاکستان یې په همدې پلمه راړوي نوتاسې یې نیسی ولـې نـه ،چـې سرخـط ورځپاڼـه پـه دې خبریـږي ، دتـورخم سرحدي چرسیانوخوبائیدتراوسه په لسهاوو دغـه رنګـه ځانمرګي ! نیولی وای .

خبر : افغـان محـب: اوبامـا پـه افغانسـتان کـې د ناکامی د مخنیوي لپه کوله خو ټرمپ د بري فکر کوي

ځرک : ګوره ګوره وایـه خولـه بـه دې خـوږه وي ، ټرمپ مفکر ته ددې وخت نه ورکوي چې یوځـل امریکاتـه ورشي هغه دکابل اداري چـارواکي ټـول شـوکمار بـولي اوسفیر صاب ته خبریې کنه کوم ډالر چې پـه افغانسـتان کې ترټرمپ وړاندې بوش او اوبامـا مصرف کـړي هغـه بیرته ورل غواړي ، ته نور پرې مصرفوي!!

# نړیوال ستر دین!!

انـــور غـــازي

ژ: امید

اوس مهال نړۍ کې اسلام دعیسویت وروسته مقبول او لــوی دین دی، دعیسویت او نورو ادیادنو په مقابـل کــې هغــه یــواځینی دین هم دی چې په ډېره تیزۍ سره په نړۍ کې خورېږي دکتونکــو له نظره : که داســلام دخوریــدلو لــړۍ هــم داســي دوام پیــداکړي تر۲۰۵۰ زکال به اسلام دعیسویت نه په مخکې ځای نیولو دنــړۍ لوی او منلی دین وي.

پورته الفاظ واشــنګټن کــې دیــوې څېړونکــې اداري د تــازه راپور نه ژباړل شوي ، شپږ کالــه وړانــدې (۲۰۱۱زکــال) دیــوې سروې ارقام ښیي:پــه نــړۍ کــې دمســلمانانو شــمیر یوملیــارد او شپږشوه ملیون دی، دعیسویانو شمیر دوه ملیــاردو پــه شــاوخوا دی ، په دې توګه دنړۍ د ټولو خلکو څلورمــه مســلمانان جــوړوي دڅېړنیزو ارقامو له مخې : نړۍ کې ۱۵۷٦۲۲۳۴۷تنــه مســلمانان شتون لري، په دې کې یواځې یو ملیارد اســیا کــې دي ،څلورســوه ملیونه په افریقا کې ، ۴۴ملیونه په اروپا کې او ٦ملیونه پــه امریکــا کې دي، په دې حساب سره نړۍ کې هر پنځم ســړی مســلمان دی او دنورو ادیانو منونکو سره دمسلمانانو تناســب پــه دې ډول دی: دیوه هندو په مقابل کې دوه مسلمانان راځي او د یــوه یهــودي پــه مقابل کې سل مسلمانان کېږي

وړاندې دمسلمانانو په شمیر کې تدریجي زیاتوالی رامنځتــه کیده، دیوولسم ستمبر پېښې وروسته په تیزۍ سره دغه شمیر کــې زیاتوالی روان دی پــه او طــس ډول هــره ورځ ۱۵ســوه شــاوخوا خلک اسلام قبلوي هالینډ دپنځلس ملیونــه وګــړو هېــواد دی پکــې دمسلمانانو شمیر څه باندې یوملیون( دولس لکه) دی دتناسب لــه پلوه داروپا په کوم هېواد کې چې مسلمانان زیات شمیر لري هغــه هالینډ دی

دمختلفو راپورونو له مخې: تیرو پنځو کلــو کــې یــواځې پــه امریکا او اروپا کې له څلور لکه زیاتو خلکو اسلام قبول کړی ،پــه سویس کې ۳۷زره کسان مسلمانان شوي ، هسپانیه کې لــه یولــک زیات خلک مسلمانان شوي ،فرانساه کې هم اســلام پــه تیــزۍ سره خورېږي ، تردې چې په امریکا او فرانساه کې اســلام دوهــم لــوی دین ګڼل کېږي ، اســترلیا کــې دیوولســم ســتمبر پېښــې وروســته ۳٦زره خلکو اسلام قبول کړی دی په بریتانیا کــې پــه نویــو پیــدا شویو ماشومانو دنومونو ایښودلو لړ کې محمــد او احمــد ترټولــو غوره نومونه ګرځیدلي دتیرکال ارقام ښیي چــې : پــه ٦۹۲۸ نویــو زیږېدلو ماشومانو له منځه په ۵۹۹۱ ماشومانو محمد نوم ایښودل شوی

له شک پرته دخوشالۍ ځای دی چې زیــات مشــهور خلــک اسلام راوړي، په امریکا، بریتانیــا ، فرانســاه جرمنــي ،هســپانیه ، هالینډ او نورو هېوادوپه اسلام را وړونکو کــې لــوی شــمیر فلمــي ستوري، سائنس پوهان، ډاکټران ، لوبغاړي، اینجنران او سیاســتوال دي ،چې اسلام راوړل یې نړۍ ته پیغام ورکوي ، مــادي پګــر کــې دغــرب دپرمختیــاوو او لاس تــه راوړنــو سربیــره اســلام دتلپــاتې نیکمرغیو او خوشالیو هنداره دی او داحقیقت هم ښــکاره دی چــې داسلام دښمنانو همــیش هڅــه کــړې چــې داســلام خوریــدو او غوړیدو مخکې خنډونه واچوي او داسلام دمقبولیت لارې تپ کړي

په لنډه ماضي کې دیوولسم ستمبر دپېښې په پلمه نړۍ کــې مسلمانان چې دکومو ستونزو ، ناخوالو، اذیتونــو سره مــخ کــړای شول او نړیوال صلیبي کفر دسوداګرۍ دنړیوال مرکز دملبې نه پــه پورته کیدونکي لوګي دمســلمانانو دمخونوتورولــو کوښــښ وکــړ هغه ټول پټ ندي

په دې لړ کې یو پلو ته یې په اسلامي هېوادو کې دسازشــونو جال په غوړولو په مسلمانانو بې امنې ، بــې ثبــاتي ، وحشــتونه او مرګونه وتپل بل پلو یې په اسلامي هېوادو نــو دمخــامخ یرغلونــو دجسارت ارتکاب وکړ هلته یې دوینو ډک ویالې بهولې چې په کتــو ورته دامریکا او اروپا دننه دیو شمیر بیطرفه خلکو لــه خولــو هــم چیغې وځي دمثال په ډول دادیانو ترمنځ دتقابلې مطالې او څیړنــې

یوه لیکواله او مصنفه ( ارام سټرانک) وایـي: مـا پرلپســې ۳۰کالــه دټولو ادیانو ترمنځ تقابلي څېړنه وکـړه بـالاخر زه دې پـایلې تـه ورسیدم چې: اسلام هغه هغه دیـن دی چـې دټولـو ادیـانو لپـاره لاربښود دی دامریکا دعامه اړیکو اداري ( پـه امریکـا کـې اســلام) عنوان لاندې یو راپور خپور کړی دهغه دلوستونه هم جوتیږي چـې امریکا ته دپالیسۍ جوړولو لړ کې سلاکار و پوهانو هم خپل دولـت ته ویلي: که روان حالت داسې دوام ومومي نو لرې نده چې اسلام په امریکا کې لوی دین وګرځي.

درسول الله ﷺ فرمان دی یو وخـت راځــي چـې اسلام به هرپوخ او خام کورته ننوزي ! نن سـبا دنـړۍ دمشــهورو خلکو اسلام راوړل جوتوي چې هغه وخت راغلی په کوم کې چـې حق به غالب کېږي او باطل نیست ونابود... ولې اسلام راغلی دحـق دغلبې لپاره وړاندې داسلام دښمنانو دا نه انګیرله چـې اســلام بـه یوه ورځ خپل حقانیت څرګندوي او دنړۍ کونج: کونج ته بـه رسي خو نن چې کافران پخپلو خولو خپلې اندیښنې بیرون ته څرګندوي چې اسلام ترټولو لوی دین کیدونکی دی مسلمانانو ته لا نور یقـین او باور ببښي

دکتونکو په اند: ډیری خلک دغـربي ژونـد او ټـولنې دخونـد څکلو وروسته دډاډ او سکون مندلو په موخه اسلام ته رجوع کـوي چې په دې توګه په لـوی شـمیر کـې خلـک اسـلام قبلـوي چـې داداسلام لپاره نشأة ثانیه او ګرانبیه اثاثه کېدای شي ولې کوم خلک چې داسلام نه په مرعوبیت سره اسلام تـه راځــي هغـوی دغـربي کلتور سره دننګونو او مقابلې لپاره ښــې وړتیـاوې او صــلاحیتونه هم لري

اوس اړتیا ددې خبرې ده چـې داسـلامي هېـوادو چـارواکي دمسلمانانو کورنیو درزونو لورته تــه پـام وګرځـوي او داســلامي هېوادو دننه داسلامي شریعت په حکمونـو دعمـل لپـاره ګامونـه پورته کړي له نیکه مرغه چې مسلمانان دجغرافیې، مالي شتمنیو له پلوه نړۍ کې ښه فرصتونه لري دنـړۍ پــه ۱۹۲ هېـوادو کــې ۵۸ اسلامي هېوادونه دي چې دنړۍ دمعدنیاتو د۷۵سلنې څښــتنان دي دنړۍ غوره ساحلونه، سوداګریزښارونه، مهمې پولې ، دوچې، لمدې او هوا مهمې لارې دمسلمانانو په لاس کې دي دتیلو یـکـې ځاګـانې او دسروزرو ذخیــرې دمســلمانانو سره دي نــړۍ کــې دتیلــو ۱۱پیــداکونکو هېــوادو( ایــران، ســعودي، نیــزویلا، امــارت، نایجیریا،کویت، لیبیا، قطر، الجزایـر، عـراق ) څخـه لـس اسـلامي هېوادونه دي خو افسوس چې ۵۸ اسلامي هېوادو واکمـن هغســې چې داسلام غوښتنه ده په اسلامي شریعت عمل نلـري او پخپلمـنځ کې یې دنفاق او شقاق اورونه بل کړي دي حال داچــې دوی ټـول دیو الله، یـو رسـول او یـو کتـاب( قـرآن) منـونکي دي بیـا هـم دجغرافیې او نورو بیلتونو په وجه استعمار دیوبـل سره پـه جنـګ اچولي په اسلامي لاربښوونو کې په نورو سربیره پـه اتحـاد او یـو والي زیات ټینګار شوی تردې چې رسول الله ﷺ دحجـة الوداع په وروستۍ خطبه کې هم مسلمانانوته دا حکم کـړی چـې : مسلمانانو! خپلمنځي اختلاف ته مه ننوځئ!

بله لویه وجه داده چې مسلمانان ترڅـو پــه علـم، تحقیـق او ټیکنالوجۍ کې وړاندې وو نو په نړۍ واکمنې هم دوی کوله او نــن سبا چې کوم قومونه په تحقیق او علم کې وړانـدې ولاړدي هغـوی په نړۍ واکمنې کوي باید مسلمانان دیته متوجه شي چــې دعلـم او تحقیق په میدان کې خپلې کمزورۍ لرې کړي او پخپلو هېوادو کـې ددیني علومو دتدریس لپاره ددښو مجهزو مدرسواو جامعو ترڅنــګ پرمختللي عصري پوهنتونونه جوړکړي او دبشري ژوند دنیکمرغــۍ لپاره غوره وسایل او ایجـادات وکـړي، ځانونـه دي پـه پـوځي او عسکري لحاظه پیاوړي او تقویه کړي دالله تعالی ارشاد دی: مـونږ ترهغه وخته دهیڅ قوم حالت نه بدلوو څو چې هغـه پخپلـه دخپـل حالت دبدلون اراده ونکړي

نو یقیناً نړۍ کې دمسلمانانو دشمیر زیـاتوالی مـونږ تـه ډاډ ببښونکی دی او په اړه یې خوښې څرګندوو خو بل لورتـه د دومـره لوی شمیر مسلمانانو دشتون باوجود نـړۍ کـې دمسـلمانانو زړه بوږنوونکی انځور ته که وګورو نو پوی بـه شـو چـې مسـلمانانو دخپلو پردیپالو واکمنو دمجرمانه پالیسیو په وجه دمسلمانانو دبـرم او عظمت څخه په یک تاریخ خاورې اړولي دي.

# جنازو باندې بمباري هم د طالبانو غلطي ده؟!

لیکوال: محمد ولید

لکه څنګه چې د ګډ حکومت له راتګ سره سم امنیتي وضعیت ورځ تر بلې مخ په خرابیدو دی، جګړه ورځ تر بلې ګرمیږي، په ځانګړي ډول ملکي مرګ ژوبله اوج ته رسیدلې ده، د بهرنیو ځواکونو له لوري ولسي وګړو باندې هوائي او ځمکني بریدونه هم تر بل هر وخت زیات شوي دي، شپنیزو عملیاتو هم زور اخیستئ دی، چې په پایله کې یې د هیواد په ګوټ ګوټ کي په زرګونو ولسي-وګړو ته مرګ ژوبله او زندان په برخه رسیدلي دي.

متأسفانه چې ګډ حکومت په خپله دری کلنه دوره کې یوه ورځ هم د بهرنیو ځواکونو بمباري ونه غندله، دا خو لا لېرې خبره ده چې د ملکي وګړو قاتلین محاکمه شي او یا اقلا ملامت وګڼل شي، بالعکس بیا د بهرنیو ځواکونو په مرګ ژوبله باندې دواړه ولسمشران او لوړ پوړي چارواکي هڅه کوي چې یو او بل نه مخکې تسلیت ورته وړاندې کړي، ترڅو چې خپل کریډیت زیات او بهرنیانو ته ځان وفادار معرفي کړي.

لکه څنګه چې ولسمشر- اشرف غني باندې هر چا نیوکې کولې چې د بهرنیو ځواکونو له لوری ملکي مرګ ژوبله نه غندي، له ډیر ځنډ وروسته نوموړي هم ځان ته د اوږو پوزه جوړه کړه، ملکي مرګ ژوبله کې یې طالبان دخیل وبلل، د بهرنیو ځواکونو شتون یې د طالبانو د مبارزې دوام وګڼه، د نوموړي په اند بهرنیان ځکه په ملکیانو بریدونه کوي چې طالبان په کلیو او بانډو کې ګرځي او د دوی په وړاندې مبارزه کوي، نو که چیرې طالبان وسله پر ځمکه کیږدي بهرنیان به ملکیانو باندې بمباري ودروي.

د ملکي مرګ ژوبلې په دوامداره لړۍ کې تیره ورځ د پکتیکا ولایت ارګون ولسوالۍ کې بهرنیو ځواکونو د تیر په شان دا ځل بیا د جنازې مراسمو باندې هوائي بریدونه کړي دي، چې په پایله کې یې دیارلس ملکي وګړي وژل شوي او پنځه نور ټپیان دي، د خبري رسنیو له قوله بمبار په داسې مهال شوی دی چې د یو طالب جنازې مراسم روان وو چې د بې پیلوټه الوتکې تر برید لاندې راغلل، که څه هم حکومتي سرچینو د شاوخوا دیرشو طالبانو وژل کیدو ادعا کړې ده مګر سیمه ایزو اوسیدونکو یوازې د ملکي وګړو مرګ ژوبله تائید کړې ده.

د یادونې وړ ده چې ودونو او جنازو په مراسمو باندې د بهرنیانو بمباري څه نوې خبره نه ده، بلکې له دې مخکې هم لسګونه ځله د جنازو او ودونو مراسمو باندې بمباري شوې ده، نه یوازې دا چې د خوښۍ او غم مراسم یې ګډوډ کړي دي بلکې درنه مرګ ژوبله یې اړولې ده، چې تر نن ورځې پورې د پیښې قربانیانو پوښتنه حکومت نه ده کړې او نه یې له دوی سره غمرازي څرګنده کړې ده بلکې هنوز یې ملکي وګړي د طالبانو په نوم وژلي دي.

ولسمشر چې تراوسه پورې غلی دی ښایي یو ځل بیا د تیر په شان د ارګون پیښه کې طالبان دخیل وبولي، ځکه چې که چیرې د طالب جنازه نه وای نو ملکیان به ولې په نښه کیدل، په داسې حال کې چې طالبان د خپلو جنازو مراسمو کې ګډون نه کوي، ځکه چې څو ځله مخکې هم په نښه شوي دي، بلکې خپلې جنازې ملکي وګړو ته سپاري ترڅو چې مراسم یې ځای پر ځای کړي.

لنډه دا چې که چیرې طالبان هم د خپلو پلویانو جنازو مراسم خپله ترسره کړي، نو دا هیڅ قانون نه ایجابوي چې مړو باندې بمباري وشي، پداسې حال کې چې طالبان بیا خپل حریف ته مرګ ژوبله واړوي نو د حکومت له لوري په ډیر شد او مد باندې غندل کیږي او د دوی کړنې غیر اسلامي ګڼل کیږي، اګر که بهرنیو ځواکونو ته هم مرګ ژوبله اوښتې وي.




# منځني ختيځ کې

## نوی صف بندي

### د نويو خطرونو سره

حسن مومند

منځنی ختيځ چې د نړۍ له خوشحالو او باامنه سيمو څخه وه اوس دنړۍ تر ټولو بدامنه سيمه ګرځېدلې ده او دلته له بل هر ځای نه زياته دربدري ده.

پدې کې شک نشته چې دلته بدامني او بربادي له بهر نه مسلطه شويده ا و د نړۍ شيطاني قوتونه پدې سيمې کې خپل اوږد مهالي شوم پلانونه له همدې لارې تطبيقول غواړي خو دا حقيقت هم له پامه د غورځولو نه دی چې د سيمې د غټو هېوادونو ناسمو کړنلارو هم ددې حالت په راوستلو کې مهم رول لوبولی دی؛ دا بايد ومنل شي چې ددې سيمې خپلو لويو هېوادونو پخپله دا سيمه عملاً د بزکشۍ په ډګر بدله کړېده.

زه پدې باوري يم چې که سعودي عربستان ، ايران او مصر په خپلو کې سره روغ وای او سياسی اختلافات يې نه درلودای نو دا خبره ناشونې وه چې حالات به د داسی خرابۍ پر لور تللي وای لکه چې ولاړل خو له بده مرغه چې ديادو ۳ واړو هېوادونو خپلمنځي روابط هيڅکله هم داسی ندی ښه شوي چې دا ۳ واړه هېوادنه يو بل ته داسې نږدې کړی چې نېږدې کېدل يې د سيمې د سترو ستونزو د حل سبب شي.

د ايران او سعودي عربستان ديپلوماتيکې اړيکې هغه مهال پيل شوې چې کله ايران په ۱۹۲۹م کال کې په جده کې سفارت پرانست خوداچې د دواړو هېوادونو ديپلوماتيکې اړيکې له پيل نه چندان ښې نه وې نو دا اړيکې څو ځله پرې شوې ؛ په ۱۹۴۳م کې په ړومبي ځل پرې شوې بيا په ۱۹۵۰م کې پرې شوې او د ايران او عراق جنګ کې سعودي عربستان د عراق مرسته وکړه نو حالات دومره ترينګلي شول چې په جنګ کې د سعودي دلتاړ کېدو خطره هم راپيدا شوه خو له نېکه مرغه چې خبره جنګ ته ونه رسېده.

د جنګ ختمېدو نه پس روابط د عادي کېدو پر لور روان شول او چې خاتمي د ايران ولسمشر شو نو د ډېرې هوښيارتيا نه يې کار واخست او د سعودي عربستان سره د روابطو د پراختيا لپاره يې ريښتوني اقدامات وکړل، په۱۹۹۹م کې هغه سعودی عربستان ته په سفر ولاړ چې د دواړو هېوادنو تر منځ په امنيتي مسايلو کې د يوبل سره د مرستو کولو ، سوداګرۍ ته د ودې ورکولو او سترو پروژو باندې په ګډه کار کولو باندې د دواړو اړخونو اتفاق هم رامنځته شوی و بس تړون رامنځته کېدل پاتې و.

دخاتمي نه پس بيا علی اکبر هاشمي رفسنجاني د ايران ولسمشرانو کې زيات اعتدال خوښی ګڼل کېدلو ؛چې يو بل ته د دواړو هېوادنو د نږدې کولو لپاره يې ډېرې هڅې کړی وې د هغه د خبرو او اقداماتو نه داسی ښکارېده چې د دواړو هېوادنو د روابطو ښه کولو او د خبرو له لارې د مسايلو حل ته ژمن و او په خپلو خبرو کې به يې تل ويل چې دواړه ورونه هېوادونه دي نو د ورورګلوۍ د ټينګولو لپاره بايد دواړه هېوادونه خپله ژمنتيا ښکاره کړي.

د رفسنجاني منځلاریتوب هم د روابطو د ښه کېدو مهم لامل و خودابايد ومنل شي چې بنستيز رول یکې د اسلامي نړۍ په اړه د پاچا عبدالله بن عبدالعزیز د مثبتې کړنلارې و.

پاچا عبدالله پدې پوه و چې ځان ته د اسلامي نړۍ رانېږدې کول د سعودي عربستان لوی بریالیتوب دی.

په اسلامي نړۍ کې چې د سعودي کوم مقام پکار دی هماغه مقام ته د سعودي عربستان رسولو لپاره هغه ډېرې هڅې کولې، د هغه د اقداماتو او خبرو نه داسې ښکارېده چې د اسلامي هېوادنو د ستونزو د حل په لار کې هغه د سعودي عربسان د فعالې ونډې غوښتونکی و، هغه به د اسلامي نړۍ د ستونزو د حل لپاره د شریکو کمېټو په رامنځته کولو زور راوړلو، د عراق ،لبنان او بیت المقدس د ستونزو د حل لپاره خو یې ایران ته د ګډو هڅو کولو خصوصي بلنه ورکړې وه.

پاچا عبدالله د اسلامي نړۍ د کوم هېواد سره د کوچنۍ ستونزې راپېدا کولو هم سخت مخالف و، دیپلوماتیکې اړیکې پرې کول یا د جنګ حالت رامنځته کول خو ډېره لږې خبره وه.

نو لنډه دا چې د سعودي عربستان او د ایران تر منځ د روابطو ښه کېدو او سعودي ته د ایران د نزدیکت اصل لامل د ایران په اړه د پاچا عبدالله مثبت دریځ و ؛د پاچا عبدالله همدا مثبت دریځ و چې رفسنجاني سعودي عربستان ته د خپل کړي سفر نه کامل رضایت ښکاره کړی و او ترې ډېر هیله مند و.

په خپلمنځي لیدنې کې دواړو مشرانو پدې اتفاق کړی و چې د ستونزو د حل او په اړینو چارو د اتفاق راوستلو لپاره به د دواړو هېوادونو د علماءوګډه شوری جوړېږي .

د دواړو هېوادونو روابط د ښه کېدو پر لور روان وو خو په ۲۰۱۱م کې په شام کې د بشارالاسد د دولت پر ضد د راپورته شوي حرکت په ترڅ کې چې خبره د دولت او ولس تر منځ مسلح تصادم ته ولاړه او ایران د بشارالاسد سره مرستې پیل او ورنه یې خپل حمایت ښکاره کړ نو دواړو هېوادونو تر منځ بېرته د روابطو د خرابېدو نوی باب پیل شو او چې کله د ۲۰۱۵م کال د مارچ په ۱۹ مې نیټې د یمن جنګ پیل شو نو د دواړو هېوادنو روابط سخت خراب شول او دا خراب روابط بیا د ۲۰۱۶ د جنورۍ په ۳ مې نېټې هغه مهال بېخي پرې شول چې په ایران کې د سعودي عربستان په سفارت ایراني ځوانانو حمله وکړه.

د تېرو ۱۳ میاشتو راهیسې د دواړو هېوادونو روابط پرې دي او د بیا پیل کېدو لپاره یې په دواړو کې تر اوسه یو لوري هم کوم اغیزمن قدم ندی پورته کړی.

د شام او یمن روانو حالاتو د دواړو هېوادو نه بالواسطه د یوبل سره د جنګ په ډګر کې مخامخ کړیدي او تر څو چې شام اویمن کې سوله نه وي راغلې د دواړو هېوادونو یو بل ته نېږدې کېدل او د روابطو عادي کېدل به ګران وي.

اوس خو خبره پدې هم خرابه شویده چې د دواړو هېوادونو تر منځ په دیپلوماتیک ډګر کې هم مقابله تېزه شویده او هر یو د بل د یواځې کولو او له ځان سره د سیمې د لویو هېوادونو د رانږدې کولو هڅې کوي چې پدې هڅو کې ایران نوی بریالیتوب تر لاسه کړیدی او له ځان سره د مصر په څېر د سعودي د یو ډېر مهم اتحادي په همغږي کولو توانېدلی دی.

مصر د سعودي عربستان ډېر زوړ حلیف دی او په سعودي عربستان کې د تېلو د کشف او ددې هېواد د بډای کېدو نه پس د مصر سره تر ټولو زیاته مالي مرسته همدې هېواد کړیده په سیمه یزو او بین المللي مسایلو کې تل د یوبل دریځ تائید کړیدی او په هر مشکل حالت کې سعودي مصر ته لاس ورکړیدی.

د مصـــر اوســـني ديکتـــاتور عبـــدالفتاح السيســـی چـــې دمصـــردمنتخب ولسمشـــر محمـــد مرسي اداره ړنګه او د محمد مرسی په زرونو پلويان يې قتل او د مرسی پـه شـمول يـې پـه لسګونو زره زندانونو کې واچول نو تمـه نـه کېـده چې د سعودي دولت به د ديکتـاتور دا دومره ظلم تائيد کړی خو د تمې خـلاف نـه يـواځې دا چې سعودي عربسـتان د السيسـی ټـول ظلـم او جبر تائيد کړ بلکې تـر څنګ يـې د السيسی اداري ته ۴ بليونـه ډالـر هـم ورکړل .

دا خورا ډېره سـتره بـلا عوضـه مرسته وه چې سعودي د مصـر سـره وکړه.

د سعودي عربستان نوی پاچا سلمان چې څـه مـوده د مخـه مصـر تـه پـه سـفر تللـی و نـو د مصـر د دولت سـره يـې د ۳۰ بلينونـو ډالـرو پـه ارزښـت د سـترو دفـاعي او اقتصادي پـروژو تړونـو نـه لاسـليک کـړل چـې پرسـرې بحيـرې هغـه جوړيـدونکی اوږد پـول پکـې هـم شـامل دی کـوم بـه چـې مصـر او سعودي د ځمکی لـه لاری د يـو بـل سـره وتـړي او د دواړو هېوادنـو تـر منځ به په سوداګری کې ډېـر زيـات پر مختګ راولي.



د مصر او سعودي عربستان يو بل ته د ډېر نزديکت په اړه داخبـره هـم لـه پامـه نـه شي غورځېدای چې دواړه دستر زبرځواک امريکا ډېر مهم اتحاديان وو.

خو يو بل ته ددې دومـره نزديکـت او دواړوتـر مـنځ دومـره جـوړو اوړدو روابطـو سره سره هـم مصـر ډېـر حيرانـونکی اقـدام وکـړ ، د بشارالاسـد د مخـالفينو پـر ضـد د روسي بمبار روان ساتلو په اړه چې روسـي کومـه طرحـه وړانـدې کـړی وه سـره لـه دې چې سعودي عربستان قطر،کويت، متحده عـرب امـارت او نـور عربـي هېوادونـه ددې طرحې خلاف و خو دايران په هڅـواود روسـې پـه غوښـتنې مصـر دا طرحـه تائيـد کـړه چې دا د سعودي د سخت قهر او نارضايت سبب شـو ، سـعودي عربسـتان د مصـر پـر ضد خپل عکس العمل هم ښکاره کړ ؛د ارامکو په نوم د سعودي د تېلو صـادرونکي تـر ټولو ستر شرکت مصر تـه د تېلـو ورکـول ودرول چې دا کـار د مصـر د لـوی تشـويش سبب شو.

مصر هر کـال ۸۷ ميلونـو ټنـو تېلـو او غـاز وتـه اړتيـا لـري چې ددې ۴۰ سـلنه د سعودي ارامکو شرکت ورپوره کوي نو ددې شرکت دا اقدام ځکه د مصر لپـاره د ډېـرې اندېښنې وړ ګرځېدلی دی.

دا فکر کېدلو چې د سعودي دارامکو شرکت دا اقدام به يو موقـت عکـس العمـل وي او ډېر ژر به مصر ته د سعودي تېل روان شي خو داسي و نه شوه نو ځکـه د مصـرد نفتونو وزير اردن او عراق ته سفرونه وکړل او د يـادو دواړو هېوادونـو سـره يـې د تېلـو او غازو درانيولو په اړه خبرې وکړې.

ايران ددې موکې نـه د فايـدې اخستلو ښې هڅې وکـړې او مصـر تـه يـې د تېلـو ورکولو وړانديز وکړ خومصرلا ايران ته مثبت ځواب ندی ورکړی .

د سعودي سره د روابطو د خرابېدو په صورت کې مصر ته ستر تاوانونـه رسـېدای شي ؛لکه دمخه مو وويـل چې دسعودي او مصـر تـر منځ د ۳۰ بليونـو ډالـرو تړونونـه رامنځته شويدي ، همدا راز په مصر کې د سـعودي عربسـتان ۳۸ سـتر شـرکتونه کـار کوي؛ ۳ مليونـه مصـريان پـه سـعودی کې کـار کـوي چې دروابطودزيـات خرابېدوپـه صـورت کـې ددوئ دراويسـتل کېـدوخطرزياتېږي ؛ هـر کـال سـعودي عـر بسـتان

مصرسره دملیاردونو ډالـر ومرسـته کوي نـو ځکـه مصـر غـواړي چـې د سعودي سره خپل روابـط ښېرتـه ښـه کړي.

شنونکي پـدې نظـر دي چـې د مصر ددې یو اقدام په سـر رامنځتـه اختلاف جور ندی ځکه چې لـه دې خبرې پرتـه بـل هـیڅ داسـی ښنسـټیز شی نشته چې دا دواړه هېوادونـه یـو لـه بـل نـه لـری کـړي ؛ د سیمې د ټولو مسایلو په اړه د دواړو هېوادونـو نظر تل یو وي او ګټی یې شـریکې ، مصر پدې پوهیږي چې د سعود ي سـره د روابطــو د خرابــوالی پــه صــورت کــې ورتــه رســېدونکي زیانونـه خـورا دومـره سـتر دي چـې زغم یې نشي لرلای او نه یـې هـم د تل لپاره ورته روسیه یا ایـران جبیـره کولای شي نـو ځکـه مصـر غـواړي چې حالات عادی او په عربی نـړۍ کې دا فکر عام نشي چې ګینې مصـر ایران سـره د روابطـو د ښـه کولـو پـه موخه عربي نړۍ پرېښوده.

د مصـر نفتـو وزیـر پـه دوبـۍ کـې کـانفرانس تـه د وینـا پـر مهـال ایران ته د نېږدکېدو خبره رد کـړه او ویې ویل چې مصر د عربـې نـړۍ د پرېښودلو او بل چـر تـه د تللـو هـیڅ اراده نه لري.

دا خبره خو له چا پټه نده پـاتې چې اسـرائیل او د امریکـا پـه شـمول ټول غربي طاقتونه په ټـول منځنـي ختـیځ کـې د جنـګ فضـا؛ دددې سـیمې داسـلامي هېوادونو کمزوري کېـدل اودنظـامونو ړنګېـدل غـواړي تـر څـو د منځنـي ختـیځ د لویـو هېوادنو تجزیې او د ګړیتو یا لوی اسرائیل رامنځته کېدو ته لار برابـره شـی او تـر څنګ یې د ټول منځني ختیځ زېرمې د غصـب او قبضـو د سـخت خطـر سـره مخـامخ شـي ؛سیمه د جنګونو دیو بل سترخطرسره مخامخ ، ټوله سیمه سخته بدامنـه او دلتـه یـو بل ستر بشري ناروین رامنځته شي.

نو د ټول منځني ختیځ دهېوادونو اوپه ځانګړي ډول د سعودي عربستان ، مصـر او ایـران تـر مـنځ د ښـو روابطـو د شـتون او د یمـن او شـام دکشـالو تـر څنـګ د ټولـو ستونزو په حل باندې متحد کېدل له حده زیات ضروری دي.

مصر باید د ټولو داسې اقـداماتو نـه ځـان وسـاتي چـې لـه املـه یـې د طاقت بـې انډولي او نوې صف بندي رامنځته کیږي .

ایران هم باید په خپل دریځ له سره غور وکړي او د سـیمې د هېوادونـو پـه چـارو کې چې یې مداخله ټولې نړۍ ته ښخې ښکاره شویده ترې ډډه وکړي .

دا سمه ده چې د سـیمې د یـو عربـي هېـواد فـوځې ځـواک هـم د ایـران د فـوځي ځواک سره برابر ندی خو ایران باید پدې پوه شي چې دکمـزورو اسـتقلال تـه پـه کـم نظر کتل ؛ په مقابل کې یې خپل طاقت ښکاره کول او د همـدې کمـزورو سـره د خبـرو پر ځای جنګ ته ترجیح ورکول هیڅکله هم له ځان سره ښه عواقب ندي لرلي.

سعودي عربستان هم باید د اسلامي هېوادونو په مقابـل کـې د ژر غبرګـون ښـکاره کولو نه ډډه وکړي د مصر او ایران د روابطو ښه کېدل دځـان لپـاره ښـه موکـه وګڼـي، د مصر سره باید خپل روابط عادي کـړي او ورتـه موکـه ورکـړي چـې د دوئ او ایـران تـر منځ فعاله ثـالثی وکـړي تـر څـو د خبـرو لـه لارې د ادرې واړه هېوادونـه دشـام او یمـن دکورني جنګ ختمولو ته لار برابره کړي او د نـړۍ د شـیطاني قوتونـو د شـومو پلانونـو مخنیوي وشي.

څـه پـدې متـیقن یـم چـې د اسـبابو پـدې نـړۍ کـې کـه سـعودي ایـران او مصـر د حـالاتو د نزاکـت ، ادراک وکـړ، د یـو بـل پـر ضـد دزور ښـکاره کولـو او احساسـاتي اقداماتو نه لاس په سر شول او په اخـلاص یـې د سـیمې د مسـایلو د حـل لپـاره اتفـاق وکړ د ټول منځنی ټولې ستونزې په ډېرې لږې مودې کې هوارېدای او دلته بیـا دا مـن او خوشحالی فضا قائمېدای شي ، داکار د دوئ مسولیت دی نو اوس دا پـه دوئ ده چـې څومره د خپل دې مسئولیت احساس کوي؟

# د اسلامي امارت تجديدي کارنامه




الحمـدلله وکفـی وسـلام علـی عباده الذین اصطفی

امابعد! دبشري نړۍ او انسـاني ژوندانه د هراړخيزې سـوکالۍ لپـاره دسـپيڅلي اسـلام ددرنښـت او ارزښـت پـه بـاب بـه تـر دې زيـات څوک څه و ويلای شي چې هماغـه د آسماني اديـانو واضـع او راليږونکـی ذات يې داسې ستايي :

إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللّهِ الإِسْلاَمُ } آل عمران

}وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الإِسْلاَمِ دِيناً فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُـوَ فِي الآخِـرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ } آل عمران۸۵

}فَمَن يُرِدِ اللّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلإِسْلاَمِ } الانعـام د بشر د سياسي اواجتماعي تاريخ په بهيرکې چې تر انبياؤ علـيهم السلام وروسته د دغې الهي لورينې

(د اسلام مقدس دين ) د خپرونې او پياوړتيا لپاره چې چـا شپه او ورځ پر ځان يوه کړې او له يوې قرباني يې هـم غـاړه نـه ده غړولې هغه څوک دي ؟ او هغه د کومو ژغورنـدويانو ډلـه ده چې د انساني ټولنې د روښانه اوځلانده مستقبل لپـاره يـې پـه ړندو لاروکې مشالونه بل کړي دي ؟ راځئ چې د ژغورنـدويانو دغه ډله پخپله له قرآن کـريم څخـه معلـوم کـړو چـې څـوک اوکوم دي ؛ قرآن کريم دغه ډله داسې ښيي :

}إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ } فاطر

}أَلا إِنَّ أَوْلِيَاء اللّهِ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ } يونس

رښتيا چې همـدوی هغـه څـوک دي چې کلـه يـې بشريـ ټولنـه د اعتقـادي بـې لاريـو او اخلاقـي فسـاد پـر ګـړنـګ ولاړه ليـدلې او چـې کلـه يـې د انسـاني سـوکالۍ متضـمن ديـن پـه خرافاتواو مفاسدو کې ډوب شوی ليدلی ، نو د خپل علمي او روحاني رسالت په احساس يې دوړې ورنه څنډلي او ځلونې ته يې را دانګلي دي ، د علماؤ لخوا دغه کار د يوې دينـي اړتيا په توګه وخت پر وخت تر سره شوی ، تر سره کيږي او دا لـړۍ بـه همداسې جـاري وي ، چې د افغانستان د اسلامي امارت تجديدي کارنامې هم ددې لړۍ يوه کړۍ ده .

الحمدلله اسلامي امارت د خپل عظمت ، شرافت اومضبوط اقتدار پر بناء پـه ټوله نړۍ کې شهرت او مقبوليت لري ، او د الله تعـالی پـه خصوصي مهربـانيوکې دا هـم دی چې د اسلامي امارت قضاء او افتاء ته هم په فقه اوفتـاوی کـې د قيـادت حيثيـت حاصـل دی ، څرنګه چې قضاء او افتاء يوه نازکه ذمه واري ده همدارنګه ددې شرائط اوصفات هـم نازک اوحساس دي ، نو ددې لپاره د يو داسې شخصيت ضرورت وي چې نه يوازې داچـې د فقهې په جزئياتوباندې ژور نظر لري او د قـرآن اواحاديثوپـه علومـو بانـدې پـوره ملکه ورتـه حاصـله وي ، بلکـې هغـه تـه بـه تبحرعلمـي ، او پـه هـر ډول پخوانيواوجديـدو مسائلوباندې کامل عبورحاصل وي ، د قوي ذهن او استعداد خاوندبـه وي اودنبـي کـريم

صلی الله علیه وسلم د احادیثو مزاج او روح تــــه د رسیدلوښــــه ذوق او صلاحیت به پکې موجود وي . او هـم به یې له لویو متبحرو عالمانوڅخه فیض حاصل کړی وي او د اولیاؤالله صحبت به یې په برخه شوی وي، د افغانستان داسلامي امارت د مرکزي دارالافتاء لپاره د یوداسې عبقري شخصـــیت ضرورت ؤ چــې ددې اوصافو سره سره پـه خپل ذات کـې هــم دیومســتقل علمـي اداري او مرکــزي حیثیــت مالــک وي ، د عالیقــدر امیــر المــؤمنین مرحــوم ملامحمد عمر مجاهد نوّر الله مرقـده له کراماتوڅخه دا هم دی چې هغـه مرحـوم پـه خپـل دورحکومـت کـې کارونه داسې اهل خلکوته سپارلي وو چې تراوسه ورته خلک حک حیران دي .

د شیخ الحدیث استاذ العلماء مولانا مفتي نورمحمـدثاقب صاحب غوندې شخصیت یې د افتاء او قضاء لپاره ګمارلـی ؤ چـې نومـوړی ددې کارلپاره پـه کاملـه توګـه اهـل ؤ . د اسلامي امارت د تېرې واکمنـۍ پـه مهال هغـه فتواګـانې چې د اسلامي امارت د مرکزي دارالافتاء لـه لوري چې مشرې یې د هیواد وتـلي عـالم ،لـوی فقیـه ،دعصرسـترمفتي شیخ الشیوخ حضرت مولانانورمحمدثاقب حفظه الله پـه غـاړه وه ، دده پـه سرپرستۍ اود یـو شـمیر نـورو وتلیومفتیانواوقاضـیانوپه ملګرتیا کې په پوره څېړنې سره استفتاګانوته ځوابونه ویلـی شـوي وو، د دې فتـاوی دویـم جلد هم اوس دلومړي جلدپه څېرله چاپ نه راووت او ړڼا یې خپره شوه ، دغه فتاوی پـه ښکلي سایز، معیاري کمپوز، رنګینه پښتۍ او ښکلي طباعـت کـې چـاپ شـوې ده ،چـې کتونکي یې په کتلواو د انسان سترګې یې په لیدلو روښـانه کیـږي ، فتـاوی پـه پنځـو (۵) جلدونو کې ده ، دوه جلدونه یې چاپ شول او ان شاء الله ډېر زر به یې درې پاتې جلدونـه هم په همدې ترتیب چاپ کړی شي او د شائقینوتنده به پرې ماته شي .

د فتاواؤ سره د صاحب د فتاوی څه ناڅه تـذکره ضرور پکـار ده ، چـې د صـاحب د فتاوی د شخصیت او علمیت په وجه ددغې مجموعې عظمت هم پـه زړونـوکې راشي ، د بدرالفتاوی محترم مفتیان او قاضیان صاحبان دلوړعلمي شخصـیت خاونـدان دي ،چـې دېتولوتذکره کول مشکل دي ، البته په دوی کې د افغانستان د مرکزي دارالافتـاء د رئـیس او قاضی القضات شیخ الحدیث مفتی نورمحمـدثاقب صـاحب دامـت برکـاتهم العالیـة نوم د خاصې یادونې وړ دی ، نوموړی د تعـارف او تبصرې محتـاج نـه دی خوبیـاهم د ځینومعاصرو اذهانو د روښانو لو لپاره یې لنډه یادونه کوو، محترم شیخ صاحب په زهـد، تقوی ، للّهیت کې د خپلواسلافو بهترینه نمونه ده ، د ښو اخلاقواوساده مزاج خاونـد دی ، عاجزي یې طبیعت ګرځیـدلې ده ، دده علمـي جلالـت او رفعـت د لمـر د رڼـا پـه څېـر ښکاره دی ، دده په زرګونو فیض یافته شاګردان په هیواد کې دننه اوله هیوادنـه د بانـدې په نورو ملکونوکې لوی لوی مفتیان ، شـیوخ الاحادیـث اوشیوخ التفسـیر، فقهـاء ، ممتـاز مصنفین ، خطیبـان اوتکـړه مدرسـین او اسـتاذان دي ، دده پـه مشـهورو شـاګردانوکې د اسلامي امارت زعیم شهید امیرالمؤمنین ملا اخترمحمد ( منصور ) تقبّل الله شـهادته ، د ریاست الوزراء پخوانی مرستیال مولوي عبدالکبیرصاحب، شیخ القران والحدیث خلیفـه دین محمد دامت برکاته العالیـة ، شـیخ الحـدیث مولانـا عنایـت الله ( برهـاني ) ، شـیخ الحدیث مولانا عبدالغني ( حقاني ) ، شیخ الحدیث مولانا نقیب الله ، شیخ الحدیث مولانـا عزیز الله (مظهري) ، شیخ الحدیث مولانا میر فاروق ، شیخ الحدیث مولانا سـلطان محمـد ( ثاقب)، د " السیاسة والادارة " مؤلف مولانا عبدالباقي ( حقاني ) ، شیخ الحدیث مولانـا عبدالسمیع ( غزنوي ) ، شیخ الحدیث مولانا محمدقاسـم تـرکمن ، شـیخ الحـدیث مولانـا محمدیوسف ، شیخ الحدیث مولانا نعمت الله ، شیخ الحدیث مولانا طالب جـان ادیـب ) او..... شامل دي ، نوموړي ته الله تعالی په خپل وخت کې د تدریسيـ فرائضـود انجـامولو په برخه کې عالمي شهرت اومقبولیت ورپه برخه کړی ؤ ، ما ( ددې کرښولیکوال ) تریـنـه اوریدلي دي چې د طالبۍ په زمانه کې د فلسفې اومنطقو نامتو اسـتاذ مولانـا عبدالسـلام

هزاروي رحمة الله تعالی علیه د ( صدرا ) د درس په دوران کې ، چې داعبارت یې ولوست : ( کما لایخفی علی ذی بصیرة ثاقبة ) مونږ ته وویل : چې طالبانو! د بصیرت ثاقبه خاوندڅوک دی؟ شاګردانوجواب ورنه کړ ، نو یی ماته وویل : چې ته یی پیژنې ؟ ماورته جواب ورکړ چې نه یی پیژنم ، نو مولانا هزاروي صاحب ماته وفرمایل : ته د ثاقب ذهن خاوند یی ، نوځکه یی له هماغې ورځې نه د خواصو او عوامو ترمنځ په ثاقب صاحب شهرت ترلاسه کړی ده ، کله چې دی د فراغت پر وخت د وفاق المدارس العربیة د احادیثوددورې په کلنۍ ازموینه کې په ټول پاکستان کې په لومړۍ درجه کامیاب شونو د جامعه دارالعلوم حقانیه باني او سابق استاذ حدیث دارالعلوم دیوبند شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق صاحب رحمة الله تعالی علیه ورته د انعام ورکولو په ترڅ کې وفرمایل : دغه دارالعلوم حقانیه چې مونږ جوړه کړې ده داموګویا یوه پګړۍ په سر ایښې ده خوکله دا پګړۍ زمونږ له سرنه لویږي ،خوتاسو غوندې شخصیتونه یی بیرته په سر را کیږدئ ، محترم ثاقب صاحب د طالبانو په اسلامي امارت کې د افغانستان د مرکزي دارالافتاء رئیس ؤ او بیا وروسته دسترې محکمې ریاست اودقاضي القضات عهده ور وسپارل شوه ،چې په ډېره ښه او کامیابه طریقه یې دغه وظیفه ترسره کړه ، ده ته د پاکستان مفتی اعظم شیخ المشایخ حضرت مولانامفتی محمدفرید صاحب نوّرالله مرقده د افتاء امتیازي سند او په تصوف کې یې د خلافت اجازه ورکړې وه ، د نوموړي اوصاف اوکمالات ډېر زیات دي چې ما یې مشت نمونه خروار یادونه وکړه .

د بدرالفتاوی په لومړي ټوک (جلد) باندې یوشمیرلیکوالانوخپلې تبصرې او لیکنې کړې دي او د فقهي ددې عظیمې خزانې یې زیاته ستاینه کړې ده ، د جامعه دارالعلوم حقانیه په میاشتنۍ مجله ( الحق )، ددارالعلوم صدیقیه په درې میاشتنۍ مجله (دررالفرید) ، د جامعه ابوهریرة په میاشتنۍ مجله ( القاسم) ، په اونیزه (خپلواک ) ، او د اسلامي امارت په ( ځرک ) مجله کې ددې علمي ذخېرې په اړوندښکلې لیکنې شوي دي چې زما لیکنه هم ددې لړۍ یوه کړۍ ده ، ددې فتاوی په دوهم ټوک ( جلد ) باندې ما دایوڅوکرښې ولیکلې ترڅو زما لپاره د ابدي سعادت ذریعه وګرځي ، ددې مجموعې له مطالعې نه راڅرګندیږي چې محترمومفتیانوپه فتوی ورکولوکې له ډېراحتیاط نه کاراخیستی دی اود ځینوخلکوپه څېر یې افراط او یا تفریط نه دی کړی ، او هره فتوی یې په متعددو حوالوسره لیکلې ده ، ددې فتاوی په تبویب اوتخریج کې یې د لاندې امورو خیال ساتلی دی:

١ـــ د استفتاء اود فتوی متن پکې بشپړ را نقل شوی دی .

٢ـــ له هرې استفتاء سره د مستفتي د نوم او د ځای د لیکلواهتمام شوی دی ، چې د عرف ، زماني او علاقې په مناسبت د فتوی حال معلوم وي او یوتاریخي یادګارهم وي .

٣ـــ په حوالوکې معروف او دودیز کتابونه ذکرشوي دي ،چې دا کار د مسئلې په مأخذ پیداکولوکې زیاته مرسته کوي .

۴ـــ د استفتاء واقعه اوحادثه هو به هو په هماغه انداز کې پیش کړی شوې ده چې څرنګه مستفتي استفتاء کړې ده .

۵ـــ د نورو فتاواؤ په څېر دغه فتاوی هم د ابواب الفقه په ترتیب برابره شوې ده چې د لومړي جلد په پیل کې یې دوه مقدمې راوړل شوې دي چې ډېرې ضروري او ګټورې دي .

او له ټولونه اهمه خبره دا ده چې د محترم شیخ صاحب دا ځانګړتیاده چې نوموړی کله لیکنه کوي او یا کومه لیکنه له نظره تیروي نویې په ډېردقیق نظرګوري ، تر څو لفظي یامعنوي غلطي په لیکنه کې پاتې نه شي ، ددې فتاوی خصوصیت دا دی چې

مسائل يې په سليسه ،آسانه او روانه پښتوليکل شوي دي چې ترتيب ، تدوين او تأليف اوډ بيروتي کتابونوپه څېر چاپ يې ښکلانوره هم زياته کړې ده ، زما په اند د همدې کتاب فارسي ، عربي ، اردو او انګليسي ژباړه هم ضروري ده .

طالبانو طالبانو په خپل دور د حکومت کې زياتې لاس ته راوړنې لرلي دي چې بيلګه يې د بدرالفتاوی په څېر لويه علمي ذخيره ده ، دوی دخپل امارت د حکومت په دوره کې د عامومسلمانانودومره زيات شميرمسائل ور حل کړي دي چې ساری يې په نوروحکومتونوکې نه ليدل کيږي ، په داسې حال کې چې دوی د امارت له لومړۍ ورځې نه ترننه پورې ټوپک له لاسه نه دی غورځولی اوله خپل دښمن سره لاس اوګريوان دي ، نو په داسې شرائطوکې چې دوی د مسائلوحل ته فارغ هم نه وو بيا يې هم بې شميره مسائل دخلکو ورحل کړي دي يقيناچې دا يو لوی همت او د الله تعالی خصوصي فضل او عنايت دی ، ځينوخلکو به دا نه منله چې طالبانودې دومره زيات شميرمسائل حل کړي وي او يا دې مرکزي دارالافتاء دومره زيات خدمت کړی وي ، خو دوی خلکو ته مستنده

فتاوی په لاس ورکړه او په ژبان حال سره يې نړۍ ته دا چيلنج ورکړ چې په دې هيوادکې کوم حکومت دومره لاس ته راوړنه کړې ده؟ د فرزدق شاعر دا شعر دلته رايادشو چې هغه جرير ته وايي :

اولئک آبائي فجئني بمثلهم
اذاجَمَعَتْنا ياجريرالمجامع

له عثماني خلافت اود اورنګزيب عالمګير پاچا له وخت نه وروسته په نړۍ کې داسې شاهکاره کارنامه بل څوک نشي۔ وړاندې کولای ، لله الحمددغه سعادت اسلامي امارت ته الله تعالی ور په برخه کړی ده .

زه له مدرسينوعالمانواو خطيبانو څخه هيله کوم چې له دې سترکتاب څخه ګټه ترلاسه کړي او په دې سره د زده کوونکو، ځوان کهول اوعامو مسلمانانواذهان منوّر وګرځوي او دوی دې له دې کتاب څخه د استفادې په اړه نورو ته وصيتونه وکړي .

زه له متعال خدای جل جلاله څخه داغوښتنه لرم چې د قيامت تر ورځې پورې په دې کتاب سره بشپړمسلمه امت ته ګټه ورسوي ، او ربّ العالمين دې حضرت شيخ صاحب ته دراز عمر ورکړي ترڅو ددې فتاوی په نورو دريو جلدونو باندې هم زمونږ تنده سيرابه کړي ، او کريم رحيم ذات دې په دغه ما به الافتخارعظيم علمي شاهکار باندې ده ته ، دده والدينو او دده استاذانو ته زيات اجرونه او ثوابونه ورکړي اواهل علموته دې ددينه د استفادې کولوتوفيق ورنصيب کړي .

په پای کې زه حضرت شيخ صاحب دامت برکاته العالية اوټول اسلامي امت ته ددغه بختور او ګټور کتاب د چاپ مبارکي ورکوم .

والله من وراء القصدوهو يهدي السبيل وله الحمد اولاً واخراً وصلی الله تعالی علی اشرف رسله وخاتم انبيائه وعلی آله واصحابه اجمعين .

ستا د ښايست ګلونه ډير دي
ځولۍ مې تنګه زه به کوم کوم ټولومه

په وياړلي افغانستان کې د يوه خپلواک پياوړي او بسيا اسلامي نظام په هيله !

مفتي محمدګل سعيد

# په نوي نسل

## د غربي اشغال او میډیا اثر

غورځنګ

له بده مرغه غربي اشغال او غربي پلوه مېډیا په دې تیرو پنځلسو کلونو کې د عامو خلکو په تیره بیا د تنکیو ځوانانو په مغز وینځلو په چټکوالي او د هیڅ فرصت له لاسه نه ورکولو سره مشغوله ده او په خپلو موخو کې چې د ځوان نسل له لارې ایستل دي تر ډېره بریالۍ ده.

ډیری ځوانان یې داسې په فکري ډول په کلکو ځنځیرونو تړلي چې دا مجال نشي کولی چې سالم او آزاد فکر ولري، کوم عمل روا او کوم نا روا خو لا ډیره لرې کیسه ده د ښه او بد توپیر یې ځینې ورک کړی.

ځوانانو ته یې د خدای لاره تکه توره او دشیطان لاره تکه سپینه ورپیژندلې

درجن درجن ډمان یې له غربي ملکونو په نیمه لوڅو او بربنډو جامو کې را وارد او زموږ د ځوانانو د لارې ایستلو سبب یې کړل.

د ساز او سندرو د حراموالي خبره خو یې پخوا ورکه کړې اوس ټول په دې سوچ دي چې د روح غذا ده او کوښښ کوي چې د سټيج په سر سندرې ووایي.

د پلار او زوی، خور او ورور ، مېږه او ښځې ترمنځ یې حیا ختمه کړې، ټوله کورنۍ تلویزیون ته ناسته وي او په سریالونو کې ورته ښایي چې د یوې ښځې یو مېړه او دوه نور یاران وي ، ښځه له یوه سړي سره واده وکړي او له بل سره اړیکه لري ، هلک پردی جلی په غیږ کې نیولي وي او ورسره نا روا اړیکې لري او...

په سیریال کې یې داسې ورته ښکاره کوي چې ګواکې دا یو ډیر ښه عمل دی او دې عمل ته یې په سیریال کې منفي رول نه وي ورکړی، مرکزي او مثبت رول یې ورکړی وي.

ټوله کورنۍ په یو ځای دا ګوري او له یو بل شرم او حیا نه کوي او ورته بده هم نه ښکاري.

د غربي هیوادونو په دې حیواني قانون کې هم په ډیری ټلویزیوني خپرونو ددې لپاره چې تنکي ځوانان یې ساتلي وي، لا پوره بندیز او لاهم د ورځې له خوا په خپرېدو بندیز دی.

دا خوبې لا په ځای پرېږده اوس یې په تلویزیون کې په ښکاره همجنس بازان هم را څرګند کړل او نارې وهي چې افتخار کووپه همجنس بازی او وایي چې زموږ حق ده چې سړی له سړي او جلی له جلۍ سره په افغانستان کې واده وکړي او حتی ځینې همجنس بازان په پوهنتون کې د ښونکو په توګه دنده هم تر سره کوي.

دا خو له هغه زرګونو بېلګو څخه ډیرې کمې بېلګې دي چې د اشغال په ترڅ کې روانې دي، او په ځان خبر هم نه یو.

په دې شهر نا پرسان کې څوک نشته چې ورته ووایي آخر ولې ؟ ولې مو ځوانان راته په مختلفو لارو تباه کوی؟ په دې تش په نوم دولت کې هم داسې څوک نشته چې ورته ووایي بس دی!

د لاسپوڅي او غلام دولت او اداري پایلې داسې وي....

# د يوه امريكايي او طالب زنداني د تحقيق خاطره

م عبدالله

يو وردگ ژباړونكي مې انډيوال دی ، يـو وخـت يـې كيسـه كوله وايې د باگرام په زندان كـې مـې د يـوه طالـب قومنـدان چـې د هلمنـد و او امريكايې مستنطق تـر منځ خبرې ژباړلې....

له څه مقدماتي خبرو وروسته امريكـايې وايـې تاسـو ولي لـه مـوږ سره جنگيږئ مايونونه راته پټوئ؟

طالب : دا ځكه چې تاسـو زمـوږ وطـن نيـولی زمـوږ شرعي نظام مو ړنگ كړی دی، په داسي حالت كې زموږ قران موږ تـه د جهاد امر كوي.

امريكايې: نو تاسو خـو هيـڅ نـه لـرئ، لـه مـوږ سره بـه څـه ډول جگړه پرمخ بوځئ؟

طالب: د جگړې پر مخ بيول زموږ كار نه دی، موږ هغه څه كوو چې د قران او وجدان لخوا پرې مكلف يو.

امريكايې نو ستاسو وجدان تاسوته څه وايې؟

طالب: زموږ وجدان موږ جهاد ته هڅوي مـوږ د غلامـۍ تـر ژوندون په مرگ او اسارت خوښ يو.

څو نوري عامي پوښتنې كيږي او تحقيق پای تـه رسـيږي . امريكايي له سـخت خفگـان نـه ماتـه نـه گـوري او طالـب تـورې كوټې ته بيول كيږي چې سخت تعذيبونه لري.

لـس ورځـې وروسـته بيـا د همغـه مسـتنطق لخـوا تحقيـق شروع كيږي.

امريكايې:  څنگه وې په تكلف خو نه شوې ؟

طالب نه الحمد لله.

امريكايې: كه په هلمند كې د خـو مهمـو طالـب قومنـدانانو ادرس راكړې تا به ژر خپل كورته ورسوو.

طالب:  نه دې راته مالوم.

امريكـايې تـه اوس هـم د تېر ځل پر خبره ولاړ يې له جهاد نه نه تيريږې.

طالب هو كـه زه سـل كالـه هم په هغه كوټه كې وساتل شـم بيـا بـه هـم تاتـه د دوښـمن پـه سترگه گورم.

امريكـايې  پـه خپـل لـپ ټاپ كې د كرزي عكس ور ښكاره كـوي چـې د بـوش پرسـينه مډال نښلوي، وايې دا ستاسو مشر دی، دا خو موږ تـه د دوسـتانو په سترگه گوري او زموږ هره خبر مني .

طالب:  نو داخو ستاسو گوډاگی دی، دا ډول خلگ زمـوږ د مسلمان ولس نماينگي نشي كـولی، مـوږ افغانـان بـه تـر هغـو لـه تاسو سره جنگيږو، تر څو مو د روسـانو پـه ډول نـه ياسـت ورک كړي.

امريكايې له غوسي نه تک سور كيږي او په لـپ ټـاپ كـې د څو افغاني ښځو او امريكايانو لوڅ عكسونه طالـب تـه ښـيې، او وايې چې دا هم ستاسو افغانان دي.

دا وخت زه او طالب دواړه مخ بلې خواتـه اړوو،  چـې گـورم طالب ژاړي او په مخ كې يې د سختې مايوسۍ علامې ښكاري، زه چې د طالب پولادي عزم مخكې هـم ډيـر متـاثير گـړی وم او هره شبېه وجدان ملامتولم، كلـه چـې مې د افغـاني خونـدو لـوڅ عكسونه وليدل چې د امريكايانو پـه غيـږو كـې پرتـې وې، همغـه ساعت مې اراده بدله شوه.

طالـب بيـا هغـې كـوټې تـه وليـږل شـو او زه درې ورځـې وروسته په تېښته بريالی شوم

***

## په برما کې تازه ستر دولتي وحشت

# او د نړۍ د جرم نه ډکه چوپتيا

شهيد زوی

دبرما بودايي دولت او ولس تل په جهر داويلي دي چې په برماکې دروهنګياقبيلې سره تړاولرونکي مسلمانان دبرماخپل اوسېدونکي نه بلکې دبنګله ديش نه راغلي کډوال دي نوله هرې لارې چې کېدای شي بايددبرما نه وويستل شي .

دله تېروکابو٧ لسيزوراهيسې دبرما دولت اوولسي بودايان لګيا دي او دبرمانه دمسلمانانودنسل ختمولوپاره له هرډول وحشت اوظلم نه کار اخلي چې دمسلمانانوکورونه ، جوماتونه اومدرسې ورانول ؛ آبادې خمکې يې غصبول ؛ تيارفصلونه يې قبضه کول ؛ مالونه لوټول ؛ له ښارونوتبعيدول ؛ په کوچنوپلموويې وژل ؛ زندانونه تري ډکول ؛ په مېرمنوجنسي تېري اوددولت ډول ډول بنديزونه اونورتول ظلمونه دهمدې مقصدلپاره شويدي اولګيادي کېږي خوفوځي سترعمليات بيا داسې وي چې دمسلمانانوله قتل عام پرته په بل يونوم هم نشي نومول کېدای .

پدې هېوادکې د١٩٤٨م نه تراوسه دبې وسواوبې وسلوغريبوروهنګيا مسلمانانوپرضد ١٣ بې رحمه فوځي عمليات ترسره شويدي ترټولوړومبی چې په١٩٤٨ کې کله دمسلمانانوپرضدد B.T.F په نوم عمليات ترسره شول نو د ٣٠ زرونه زيات مسلمانان وحشي بودايي فوځيانوووژل .

دهغې نه پس يې هرفوځي عمليات ترسره کړيدي پکې په زرونوبې ګناه مسلمانان شهيدان کړيدي .

دبرما فوځ تېرکال په ناڅاپي ډول دامشهوره کړه چې په روهنګيامسلمانانوکې وسلوال شتون لري چې پرضد يې تصفيوي عمليات اړين دي نودتېريوکال راهيسې ددولت له لورې دمسلمانانودوژنو؛ زنداني کولواوبې عفته کولونا اعلان شوی لړۍ روانه ده خو

٤ مياشتې وړاندې دولت اعلان وکړ دبرما د اراکان ولايت په شمال کې دروهنګيا مسلمانانو په منځ کې دپټ شويووسلوالوپرضد فوځي عمليات پيلوي ؛ په تېرو٤مياشتوکې چې فوځ اوولسي بودايانو ددمسلمانانو پرضددظلم او وحشت لړۍ ښه په منظم ډول روانه وساتله نو اوس يې اعلان وکړ چې دا عمليات يې پای ته ورسول.

لکه دمخه موچې وويل په برما کې دمسلمانانو دقتل عام تاريخ ډېر پخوانی دی خو په ٢٠١٢ م کال کې چې دبودايي دولت او بودايي ولس له لورې دمسلمانانو پرضد دظلم او وحشت کومه نوې لړۍ پيل او ترننه يې دوام ومومند داپه تاريخ کې هغه بې سارې لړۍ ده چې بايد ددې هېواد نه دمسلمانانو دنوم او نښې دختمولو په منظم پلان ونومول شي؛دا هر څه ځکه بايد منظم پلان وګڼل شي چې دا بې له کوم سبب او موجبه پيل شويدي اوترننه جريان لري ؛ په ټول هېواد کې عموماً او په اراکان کې په ځانګړې ډول مسلمانان هيڅ دې ته نه پرېښودل کېږي چې دارام ساه واخلي او داطمينان کومه شپه تېره کړي.

دمسلمانانو پرضد فوځ اوسني عمليات دهمدې تسلسل يوه کړی ده؛کابو ٤ مياشتې دمخه ددولت فوځونه په ناڅاپي ډول ؛ له کوم موجب او سبب پرته په شمالي اراکان کې دمسلمانانو پرضد پدې پلمه د((ايرياکليرنس آپريشنز)) په نوم فوځي عمليات پيل کړل چې دلته تروريستان شتون لري .

په اوسنو فوځي عملياتو کې بودايي فوځيانو په سونو مسلمانان قتل کړل او تر۷۳ زرو پورې دبرما نه دبنګله ديش پرلور هجرت کولو ته اړشول.

بنګله ديش ته درسېدلو مسلمانانو سره دخبرو اترو پراساس دملګرو ملتونو له لورې په چمتو کړي راپور کې راغلي دي چې دبرما فوځيان دبشر ضد سختو جرمونو مرتکب شويدي؛دتروريستانو په نوم يې بې ګناه زيات ځوانان وژلي دي اوپرمېرمنو يې ډله ايز جنسي تېري کړيدي.

په برماکې پرمظلوموسلمانانوداوسنوظلمونوپه اړه دملګروملتونو اداري دبشر دحقوقوڅانګې يوې لوړپوړې چارواکې ((ينګ هی لی )) ويلي دي چې سره له تېرولوهڅومو ته دبرما دولت اراکين ايالت ته دتللو اوپه خپلوسترګودحالاتودليدلو اجازه نده راکړی خودستيلايټ له لارې چې دورانووېجاړوکلو اوسوزول شوکورونوکوم عکسونه اخستل شويدي اوموږچې داراکين نه بنګله ديش ته دراغلوکوموبې شمېره روهنګياکورنيوسره مرکې کړيدي اوورنه مومعلومات ترلاسه کړيدي نو ورنه داجوتېږي چې دلته دبرما دفوځ اونورووسلوالوله لورې دبشرضد ډېرسترجرمونه ترسره شويدي .

نوموړې چارواکې ويلي دي چې دخپلې ادارې نه به وغواړي چې ددې ظلمونو دپردې پورته کولوپه موخه اراکين ته دتحقيقاتي ټيمونولېږل يقيني کړي

دملګرو ملتونو له لورې په خپور شوي راپور کې چې کومې خبرې راغلي دي دبرما دولت ترې انکار ونشو کړای نو ځکه يې دنړی په سترګو کې دخاورو وراچولو په موخه ددې خبرو دڅېړنو او حقايقو معلومولو لپاره يو دولتي پلاوی ټاکلی دی.

مظلومو او بې چاره مسلمانانو پرضد اوسنی ظلم او وحشت دومره ستر دی چې پرضد يې پوپ فرانس هم اواز پورته کړ او ويې ويل چې روهنګيايې مسلمانان له دې امله وژل کېږي او وربانـدې ظلمونه روان دي چې دوئ خپل سقافت ژوندی او دخپلې عقيدې سره برابر ژوند تېرول غواړي .

همدا راز دبشر دحقوقو نړيوال تنظيم ايمنستي انټرنيشنل هم د روهنګيا مسلمانانو پرضد دفوځ اوسني ظلمونه سخت غندلي دي او ويلې يې دي چې په اوسنو فوځي عملياتو کې دفوځ په لاس بې ګناه مسلمانان وژل شويدي،زندانونو ته وړل شويدي،سخت سکنجه شويدي ،پر مېرمنو جنسي تېري شويدي او ګڼ کورونه يې وران کړيدي.

ددې عملياتو نه اغېزمن دبنګله ديش پرلور تللي مسلمانان دډېرو مشکلاتو سره دبنګله ديش کوکس نومي ښار ته رسېدلي دي.

دادبنګله ترټولو ستره او سياحتي سيمه ده چې اراکان ته ترټولو نږدې همدا سيمه ده ؛دبرما مسلمانان برما ته نږدې ګنو هېوادونو ته کډه شويدي خو ترټولو زيات يې په بنګله ديش کې دي؛داوسنو تللو مهاجرينو نه لا دمخه پدې هېوادکې ۲۳۲ زره مهاجرين شتون لري چې زياتره يې دکوکس ښار ته څېرمه په کمپونو کې خوراډېر بدحالت کې شپې ورځې تېروي؛دوئ دکمپونو نه بېرون دهېواد يوې برخې ته هم دتللو اجازه نه لري؛دبنګله ديش دولت خپلو پوليسو او امنيتي ادارو ته حکم کړی دی چې دبرمانه راغلی يو مهاجر دي هم دهيواد په کوم ښارکې مېشت کېدلو يا کار کولو ته نه پرېږدي.

په کمپونـو کـې مېشـت دژونـد دتېولـو اسـانتیاو نـه بـې برخې دا مهاجرین دژوندي پاتې کېدلو لپاره دملګـرو ملتونـو اداري له لورې دورکـول کېـدونکو خـوراکي مـوادو پرتـه بـل هیڅ شی ته لاس رسی نه لـري؛بس دوئ دلتـه پـدې خوشـاله دي چې سرونه او عزت یې په امن کې دی خـو لـه بـده مرغـه چې ژونـدیې لـه دې املـه بـې اطمینانـه دی چـې ددوئ پـه اړه دبنګله دیش ارادې ښې ندي .

دبنګله دیش دولت اراده ښـکاره کړیـده چـې دبرمـا نـه راغلي ټول مهـاجرین بـه دخلـیج بنګـال ((تهینګرچـار)) نـومې جزیرې ته استوي؛دا جزیره دکوکس نه د۹ ساعتونو په واټـن کـې دمیګهناسـیند پرخـولې پرتـه ده؛دا دانسـانانو نـه خالي،شاړه او دانساني ژوند لپاره داسـې نامسـاعده جزیـره ده چې ډېر سیلابونه اوزلزلې پکې راځي ؛ دبنګلـه دیـش دولـت دساحلي ولسوالیو ددولتـي مشـرانو یـو ټـیم جـوړ کړیـدی او ورته یې حکم کړیدی چې دکـوکس او دهېـواد نـورو سـیمو کې راجستر شوي او ناراجستر دټولـو مهـاجرینو دانتقـالولو او په تهینګر چار جزیرې کې هم دځای پرځای کولو لپاره پـلان جوړ کړي.

یادې جزیرې ته دروهنګیا مسـلمانانو دانتقـالولو پـلان پـه ۲۰۱۵ م کال کې دبنګله دیش دولت اعلان کړیدی؛ سـره لـه دي چـې دمهـاجرینو مشـرانو او دملګـرو ملتونـو اداري دبنګلـه دیش دولـت نـه څـوځلـې غوښـتي دي چـې دې جزیـرې تـه دمهاجرینو دبوتللو دپلان نه دې لاس په سر شـي ځکـه چـې دا جزیره دانسانانو داوسـېدلو وړ نـده خـو دبنګلـه دیـش دولـت تراوسه ددوئ په غوښتنې غوږ ندی ګرولای او دخپل پـلان پـه عملي کولو لاهم کلک ولاړ دي.

ای ایف پي نومي اطلاعاتي اژانس ته دنوم نـه خپرولـو پـه شرط یوبنګله دیشي چارواکي ویلي دي چـې دبـارانونو شـپو ورځو کې دا جزیره تل اوبـه لانـدې کـوي نـو پـدې جزیـرې کـې دمهـاجرینو ځـای پرځـای کـول ډېـره خوفناکـه او خطرناکه خبره ده .

ددې اندېښنو په جواب کې دبنګله دیش دولت ویلـي دي چې دې جزیرې کې دولت په سونو زره نیالګي کېنـوي چـې پـدې سـره بـه دې جزیـرې کـې دسـیلابونو خطر لـه منځـه ولاړشي .

هرڅـوک پـوهېږي چـې ددولـت دا خبـره بـې حـده کمـزورې ده ځکـه چـې پـدې کـال کـې تـازه کـرل شـوي کوچني نیـالګي پـه هـیڅ صـورت کـې دسـېلاب مخـه نشـي نیولای؛دانیالګي چې دسېلاب دمخنیوي وړ ګرځـي لـږ ترلـږه لس کاله وخت به وغواړي.

ددې ترڅنـګ چـې پـدې جزیـرې کـې دسـیلاب زیـات حطرونـه وي دا دسـمندري غلـو مشـهور پـټن ځـای هـم دی نـو دکمزورو او بې وسلې مهاجرینو لپـاره دا خطـر څـه دسـېلاب دخطر نه کم ندي.

پدې تـازه ورځـو کـې دملګـرو ملتونـو داداري دپخـواني سرمنشي کوفي عنان په مشـری کـې یـو درې کسـیز پـلاوی دمهاجرینو دمشکلاتو نه دځان خبرولو او دسـتونزو دحـل لارې باندې دغور کولو په موخه کوکس ته راغلي و.

ددې ترڅنګ چې پـه برمـا کـې ددې مهـاجرینو پرضـد دترسره شویو دټولو ظلمونو نه دې مهاجرینو پرده پورته کـړه نـو پـه تهینګرچـار جزیـرې کـې دمهـاجرینو دمېشـت کولـو ددولتي پلان نه یې هـم هغـه خبـر کـړ خـو تراوسـه دملګـرو ملتونواداري دبنګله دیش دولت نه پدې اړه کومه غوښـتنه نـده کړې .

نوځکه روهنګیا مسلمانان سخت ناهیلي شـویدي اویقـین ته یې پرېوتی ده چې دبنګله دیش دولت په یوحالت کې هـم پـه خپـل هېـوادکې ددوئ پرېښـودلوته نـدی تیـار ؛ دا دولـت خامخا ددوئ نه ځان خلاصول اودې جزیرې تـه دلېږلولـه لارې

ددوئ قتل عام غواړي ؛ دامظلوم اوبې چاره مسلمانان هيڅ نه پوهېږي چې څه وکړي ؟

بس دسخت مجبوريت له امله يې دمرګ دې وادی ته دتللو پرځای دوحشي بودايانوله لورې په ګوليو ويشتلو او نورو ظلمونو ته ترجيح ورکړی اوبېرته يې اراکان ته مخه کړيده ؛ دروهنګيامسلمانانومشرانو رسنيوته ويلي دي چې په تېرې يوې مياشت کې کابو٥زره تنان بېرته اراکان ته ستانه شويدي .

دروهنګيا مسلمانانودحقوقودساتنې دفعالانونه حافظ نوراحمدنومي يوتن وويل چې دې کې شک نشته چې برماته ستانه شوي مسلمانان دمرګ د ډېر سترخطرسره مخامخ دي ؛ دبرمادولت به داستانه شوي مسلمانان دبنګله دېش لپاره دجاسوسی يادمجاهدينوسره دتړاوپه تور تورنوي اوبيابه ټول زندانونو ته بوځي چې ددې زندانونونه بېرته ژوندي راتلل تقريبا ناممکنه ده خويادې جزيرې ته تلل اودسمندر بې رحموڅپوته ځان سپارل هم څه اسان کارندی نوځکه يې بېرته تللوته ترجيح ورکړه .

داوسنوپېښوپه اړه دملګروملتونو اداري دبشردحقوقو دڅانګې له لورې په خپورشوي راپورکې راغلي دي چې د٢٠١٦م داکتوبرپه ١٠مې نېټې چې دبرما فوځ د((ايريا کليرنس آپريشنز )) په نوم کوم فوځي عمليات پيل کړي وو اوتر ٤ مياشتويې دوام وکړ په ترڅ کې يې دخپلو مالونو اوعزتونو دساتنې په موخه تر٧٣ زروپورې روهنګيا مسلمانان دخپلو کورونو نه ګاونډي هېواد بنګله ديش ته په هجرت کولومجبورشويدي اودفوځ پوليسو اوعاموسله والوپه لاس په سونوعام وکړي وژل شويدي ؛ دفوځ اوپوليسوسره يوځای نادولتي بودايي وسلوالوهم پدې عملياتوکې ګډون درلود؛ راپور کې راغلي دي چې دبې ګناه انسانانودژلوترڅنګ وسلوالوځواکونو پرګڼومېرمنوجنسي تېري هم کړيدي .

راپور دعيني شاهدانو له خولوليکلي دي چې ٥فوځي افسرانوپريوې مېرمې جنسي تېری وکړ اودهغې ٨ مياشتنی کوچنی يې وواژه ؛ همداراز وسلوالو د٦کلونونه دکم عمرلرونکي ٣کوچنيان په تېروتيګوذبح کړيدي .

دملګرو ملتونواداري دبشردحقوقو څانګې مشرزيدبن رعد الحسين ته چې دمسلمانانوپر ضددبرمادفوځ دظلم اووحشت دامعلومات وړاندې کړای شول نوهغه احساساتي شو او ويې ويل چې داڅومره لوی نفرت دی چې دميندودغېږونه تي خوري کوچنيان اخستل کېږي ، وژل کېږي اوپه ميندو يې جنسي تېري کېږي .

په برماکې دمسلمانانوپرضددتازه ظلم او وحشت پېښې په داسې حال کې رامنځته شوې چې په برماکې دمېرمن آنګ سان سوچي حاکميت دی ؛ هغه سوچي ،چې دنوبل دامن مډال ورکړل شويدی اوپه هېوادکې دديموکراسی داعادې اودديکتاتورپرضد دمبارزې اتله ګڼل کېږي ؛له همدې امله يې دفوځي ديکتاتورله لورې ١٥ کلونه دنظربندی صعوبتونه ګاللي دي خو اوس دهمدې بشرپالی فوځونه ددې په حکم داسلام په جرم په لويه پيمانه بې ګناه خلک وژني نه ددې بشردوستي خرابېږي اونه يې هم ديموکراسی اودبشرحقوقوته ژمنتيا ماتېږي ؟!

په زړه پورې خولاداده چې په ٢٠١٥م کې واک ته رسېدلې دبرما مشرې آنګ سان سوچي نه چې دفوځ له دمسلمانانوپرضد دترسره شواوسنوظلمونوپه باره کې پوښتنه وشي نوهيڅ جواب ورکولوته نه تيارېږي .

مسلمانان چې دغاصبو يرغلګرواوتجاوزګرو نه دخپلو خاورودآزادی اودخپلوځانونو ، عزتونو اومالونو دساتنې لپاره دګرته راووځي اومقاومت پيل کړي نونړی يې تروريستان بولي خوچې دلته په برماکې په دولتي سطحه ستر تروريزم روان دی اود ماګ په نوم يولوی تروريستي تنظيم

فعال دی اوبالفعل یې په سونو زره انسانان پـه خپـل هېـوادکې بې له کوم جرمه دوحشت اودهشت ښکار دي نو نړی یـې نـه تروریستان بولي نه یې افراطیان ګڼي اونه یـې وحشـي افعـال په تروریستي کړنو یادوي ؟! نوپـه برمـاکې چـې ددې وخـت ډیرستربشري ناورین روان دی ددې ستربشـري نـاورین پـه اړه نړی خپل څومره مسـؤلیت اداکـړاو څـه ډول دریـغ یـې غـوره کړ؟ داډېره روښانه شوه اودنړی منافقـت خلکوتـه ښـه واضـح شو.

امریکا ، اروپایې اتحاد ، ناټو او دامنیت شـوری څـه شـول ؟ دوئ تـه پـه برمـاکې روان ظلمونـه ولـې نـه ښـکاري ؟ ددوئ دتروریزم ضد مبارزه څه شوه ؟ بشر دوستي یـې چېرتـه ولاړه ؟ دمظلومو انسانانو دژغورنې لویې دعوې یې څـه شـوې؟ دبرمـ وحشیان ولې بودایې تروریستان نه بولي ؟

بـــس دادلویـــدیځې کفـــري نړۍاوملګر وملتونوپـــه نـــوم دغلامې ادارې اصلي څېره ده،خدای دې وکـړي چـې مسـلمانان یې په غولونکوناروناورونه غولېږي .

ددې وحشـــت پـــه مقابـــل کـــې د امریکـــا ،اروپـــایې اتحـــاد ،دبشرد حقوقو په نوم دنړیوالوادارو اوملګر وملتونوچوپتیا خوبـه اسلام دښمني وګڼو؛دوئ چې دځمکې له مخـه دمسـلمانانوله منځه وړل یې ستره هیله ده اودنړی په مختلفوبرخوکې یـې د مسـلمانانو قتـل عـام پیـل کړیـدی نوپـه برمـاکې یـې چـې دبودایانوپه لاس داهیله پوره کېږي ولې به یې مخنیـوی کـوي اویابه یې پرضداوازپورته کوي ؟

خــو داســلامي نــړی مجرمانــه چوپتیــا تــه بــه څــه نــوم ورکړو؟



# خاطره!

د اسلامي امارت نومیالي مشر شهید مولوي احسان الله احســان رَحِمَهُ ٱللَّهُ کیســه کولـه چـې د طالبـانو پـه اول وخـــت کـــې چـــې پـــه کنـــدهار کـــې ډیرمشـــهور قـــاتلین قومنـدانان پـه دار وځـړول شـول، دهغـه وخـت د ملګروملتـو استازی محمـود مسـتري مـوږ تـه پـه یـوه کتنـه کـې وویـل چې ګورئ تاسو اعدامونه کوئ او لـه انسـان څخـه د ژونـد حـق اخلـي، دا کـار دبشـري او نړیوالـو قوانینـو او انسـاني عاطفې خلاف ده.

مولـوي احسـان الله صـاحب وایـي مـا پـه خـوب کـې د قراني حکم له مخې ورته وویل چې په دې قصاصونو کـې د انسـانانو لپـاره ژونـد دی. بیـا مـې مثـال ورکـړ چـې دلتـه پـه کندهار کـې یـو پاټـک سـالار قومنـدان وو سـل کسـان یـې وژلـي وو، تـه فـرض کـړه کـه چیـرې د دغـه جنایتکار د اول قتل په وخت کـې مـوږ حاکمـان وای او پـه لـومړي قتـل مـو دا قومنـدان اعـدام کـړی وای، نـو آیـا دا ۹۹ نـور وژل شـوي کسان به ژوندي نه وو؟

وایـي د ملګروملتـو د وخـت نماینـده محمـود مسـتري سترګې زیږې پاتې شوې او بې ځوابه شوو .

نـو د آزادۍ رادیـو متصـدیانو تاسـو هـم کـه ژور سـوچ او سالم عقل درلودای له غله او قطاع الطریق څخه به مو موږ تـه یـو ځـوان نـه جوړاوه او دوسـتم بـه مـو هـم زمـوږ د ملـک واګې نه سپارلو.



# د سیمکارټ له لارې تعقیبیدل

لکه څرنګه چه نړۍ ورځ تر بلې د پرمختګ ګامونه اخلي نو له همدې سره سره د خلکو په ذهنونو کې د نوی ټکنالوژۍ په اړه مختلف سوالونه هم پیدا کیږی. چه یو له دغو عمده سوالو څخه چه زمونږ د هیوادوالو په ذهنونو کې ګرځی هغه د مبایل پواسطه د یو شخص پیدا کیدل او تعقیبیدل دی.

ډیرو خلکو له ما څنی دغه سوالونه هم کړی او حتی څنی خلک خو لا په دی عقیده دی چه که ګرځنده تیلیفون ګل (خاموش) هم وی د تعقیبیدلو امکان لری.

لکه څرنګه چه دغه د ګرځنده تیلیفونونو ټکنالوژۍ د نړۍ نورو خلکو ته په نسبت د افغانانو ډیره روښانه ده او نړیوال امکانات ډیر لری چه د یوی موضوع په هکله معلومات پیدا کړی، نو له همدې وجی می وپتیله چه د دغه د ګرځنده تیلیفونو په هکله یو څه معلومات خپلو هیواد والو ته وړاندی کړم.

سوال په دی کی دی چه آیا د ګرځنده تیلیفون د لاری یو شخص پیدا کیدلای شی او یا تعقیبیدلای شی که نه؟ جواب داسی دی چه بلی هو.

په دوه لارو پیدا کیدلای او تعقیبیدلای شی.

۱ د سیم کارت د لاری

۲ د ګرځنده تیلیفون د سیټ د لاری

**د سیم کارټ د لاري**:

کله چه یو سیم کارت په ګرځنده تیلیفون سیټ کی واچول شی او روشن کړل شی نو سیم کارت اتومات د تیلیفون له دستګاه سره ځان رجستر کوی چه دی ته په انګلیسی کی لوکیشن آپډیټ هم وایی یعنی د موقعیت معلومول خپل تیلیفونی شبکی دستګاه ته.

سیم کارت دګرځنده تیلیفون دستګاه ته وایی چه زه فلانی نمره د فلانی بی تي ایس نه سګنل اخلم او دغه می موقعیت دی. هر سیم کارت د اصلی مخابراتی شرکت سره په دستګاه کی چي ایچ ایل آر ورته وایی ثبت وی.

نو چه کله سیم کارت د رجستریشن درخواست کوی نو د ګرځنده تیلیفون دستګاه ایچ ایل آر یی پیژنی او د ثبتیدو اجازه ورته ورکوی. په عین وخت کی دستګاه بیا دغه سیم کارت باندی قید او شرط ږدی چه د بیلګی په ډول که رومینګ اجازه لری یا نه لری، ټکس یا تیلیفون کولی شی او که نه شي. کریډیټ لری که نه لری او داسی نور...

غواړم چه فقط د موقعیت په هکله خبری وکړم او موضوع رانه اوږده او بلی خواته لاړه نه شی. نو کله چه دګرځنده تیلیفون سیم کارت د دستګاه سره راجستر شو نو په هره لحظه کی ګرځنده تیلیفون سیم کارت دستګاه ته خبر ورکوی چه زه دلته یم. چه دی ته په انګلیسی کی د مخابراتی علومو په ژبه کی هندشیک (یعنی ستړی مه شی) وایی. په بل عبارت دستګاه سیمکارت ته وایی چه چیرته یی او سیم کارت ورته خپل ځای ښایی وایی دلته یم. دغه هندشیک په یوه دقیقه کی تر سل وارو زیات وی. څینی تیلیفونونه یو وړکی شین ګروپ

لري چه هره شیبه کې پرقیږي. دغه پرقیدل د هند شیک سیګنل وي چه د دستګاه سره په تماس کې وي.

بیا په ګرځنده تیلیفونو دستګاه کې دوه نوري آلې دي چه یو ته یې ټایمینګ اډوانس او بل ته ټراینګولیشن وایي او د هغه په ذریعه یو شخص د خپل موقعیت په اته ۸ مترۍ کې پیدا کیدلای شي.

که څوک خپل ګرځنده تیلیفون ګل(بند) کړي نو چه کوم ځای کې ګل شوي وي په دستګاه کې همغه ځای د اخر ځل لپاره ثبت پاتې وي. د مثال په طور که دکابل د ارګ د دروازی تر مخ دي مبایل بند کړ نو دستګاه ته دا معلومه وي چه اخري ځای چه د ستا په اړه معلومات ثبت دي هغه د ارګ د دروازی مخه ده. کیدای شي ته همالته یې او کیدای شي له هغه ځایه تللي یې خو دستګاه د ستا اخري ځای ارګ پیژني چه تر څو بل ځای کې خپل ګرځنده تیلیفون روښانه نه کړي.

**د ګرځنده تیلیفون د سیټ د لارې:**

د ګرځنده تیلیفون د سیټ د لارې هم یو شخص پیدا کیدای او تعقیبیدای شي. او هغه داسې چه کله هم په ګرځنده تیلیفون سیټ کې سیم کارت واچوی نو چه کله خپل مبایل روشن کړي د سیم کارت د لارې د دغه سیټ نمبر چه هر یو سیټ ځانته یو خاص نمبر لري د دستګاه سره ثبتیږي.

د ګرځنده مبایل سیټ نمبر ته (ای ایم ایی ای) وایي. یعنی انټرنشنل مبایل ایکوپمینت آډینټیټي او دا د ګرځنده مبایل د آلې یوازینی نمره ده چه په دې نمره بل سیټ وجود نه لري او دغه نمره د مبایل د تولیدونکی شرکت لخوا په مبایل کې پروګرام شوي وي او د محوه کیدو امکان نه لري.

دغه آی ایم ایی ای ۱۵ عدده وي او تاسې یې کولای شئ چه د خپل مبایل دغه نمره د بطرۍ لاندې په مبایل کې په لیکلې بڼه ووینئ او یا د مبایل په شیشه کې درته ښکاره شي.

که غواړئ چه دغه نمره دخپل ګرځنده تیلیفون په خپل ګرځنده تیلیفون شیشه کې یې ووینئ نو لاندې حروف ولیکئ او د خپل ګرځنده تیلیفون دغه ای ایم ایی ای به درته ظاهره شي (ستوری هش صفر شپږ هش).

*#۰٦#

دغه ای ایم ایی ای نمره د دستګاه په ایکویپمینټ ایډینټیټي ریجستر چه یو ډاټآبیس دی هلته ثبتیږي. یعنی دستګاه ته وایي چه دغه د ګرځنده تیلیفون سیم کارت په دغه د ګرځنده مبایل سیټ کې اچول شوی او په دغه ځای کې موقعیت لري.

اوس که یو شخص خپل سیم کارت وغورځوي او بل سیم کارت د ګرځنده مبایل سیټ کې یې واچوي نو په دستګاه کې معلومیږي چه هماغه سړي دي صرف سیم کارت یې بدل کړی، ځکه دستګاه کې مخکې دغه سیټ یو ځل د پخواني سیم کارت سره



ثبت شوی وي او سیستم دا معلومات ساتلی وي.

په اروپایي او نورو هیوادو کې که څوک دګرځنده مبایل سیټ غلا کړي نو چه څنګه یې خپل سیم کارت پکې واچوه پولیس یې پیژني ځکه د نوی سیم کارت سره د سیټ نمره دستګاه ته ځي او بیا پولیسو ته معلومیږي چه اوس دغه سیټ د چا سره دی.

که دغه موضوع نوره هم واضع کړم نو ویلای شم چه که څوک سل سیم کارته بدل را بدل کړي نو بیا به هم دستګاه د ټولو سیم کارتو ریکاډ د دغه ګرځنده مبایل سیټ سره یې ساتي.

خلاصه د پورتني لیکلو دا ده چه سیم کارت د اچ ایل آر سره ثبتیږي او پری یو شخص معلومیدلای او تعقیبیدلای شي، او د ګرځنده مبایل سیټ د ایکویپمینت آیډینټیټي راجستر سره ثبتیږي او یو شخص پری معلومیدلای او تعقیبیدلای شي.

په تیلیفونی دستګاه کی د یوه کال لپاره د یو شخص خبری د ثبت په ډول ساتل کیږی مګر د ځینی هیوادونو د مبایل شرکتونه یی بیا په خاصو کیسټو کی د ثبت په طور د ابد لپاره ساتی.

پاتی دی نه وی چه کله ګرځنده مبایل سیټ ګل (بند) وی د موجوده ځای د پیدا کیدو یا تعقیبیدو امکان نه لری.

دا چه په زرګونو کتابونه د مخابراتو په علومو کی ددغه موضوعاتو په هکله ډک دی او ما دغه معلومات د تیرو څوارلسو کلونو کی د هیواد نه بهر د کاری تجربی پر اساس تر لاسه کړی نو له همدی وجی مشکله ده چه د ریفیرینس یا مآخذ برخی ولیکم او په یاد می اوس هم نه دی.

انجنیر خبیر احمد

* * *



# راځئ چې نیالګي کېنوو!

الیاس فاتح

نیالګیو کرلو ته ، که له یوې خوا د اسلام مقدس دین خورا زیات اهمیت ورکړی؛ له سترو نېکو اعمالو او جاري صدقو څخه یې شمېرلی له بلې خوا د سیمې ځمکنۍ سمسورتیا او دټولنې اقتصادي پرمختیا له مهمو منابعو څخه ګڼل کېږي او سربیره پردې د انسانانو او حیواناتو دژوند هره شېبه ورپورې تړلې ده .د بشریت سترلارښوود حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم فرمایي: کوم مسلمان چې یو نیالګی کېنوي او یا یو شی وکري له هغه څخه چې کوم مارغه یا انسان او یا څاروی خوراک وکړي نو په دې ټولو سره هغه ته د صدقې اجر ورکول کېږي .دغه ډول ، کله چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له یوې غزا څخه راستون شو او مدینې منورې ته نږدې د بني حارثه په کرنیزه ځمکه کې چې پر نیالګیو پوښل شوې وه، شپه وکړه؛ بیا خوږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم د نیالګیو د دوامداره لری په اړه داسې سپارښتنه وکړه: هرڅوک چې له دې ځای څخه یوه ونه هم پرې کړي؛ نو پرځای دې یو نیالګی کېنوي .د دې ترڅنګ د نیالګیو کرښت نورې صحي ګټې هم لري؛ اکسجن لرونکي فضا برابروي ، د چاپېریال راز راز مهلکې باکتریاګانې او دهوا چټلۍ له منځه وړي، د حافظې پیاوړتیا کې مرسته کوي، د ډول ډول ناروغیو مخه نیسي او د سیمې کرنیزې ښېرازۍ ته روح تازه کونکي او زړه راښکونکي ښکلاوې او رنګینۍ وربښي .دا چې زمونږ ګران افغانستان تر ډېره پر زراعت ولاړ هېواد دی او خلک یې د کرنیزو محصولاتو څخه په ګټه اخیستلو خپل ژوند ته ادامه ورکوي او د اقتصادي ودې یوه ذریعه یې ګرځېدلې ، پاملرنه یې تر ټولو زیاته اړینه ده .نو ګرانو هېوادوالو ، راځئ !چې دخپلې اسلامي ، وطني او شخصي وجیبو ترسره کولو په پار د نیالګیو موسم رارسیدو سره سم نوي نیالګي کېنوو او د زړو نیالګیو ترڅنګ یې په ښه توګه پالنه وکړو ، څو چې په خپل لاس مو خپل راتلونکی زرغون او سمسور شي.

# د طالبانو مثبت یون

ليکنه - جواد منهاج

د هغو انساني قوتونو سره چې په یویشتم ( ۲۱ ) قرن او د ټيکنالوجۍ په پېر کې د ټولې نړۍ زبر ځواک او د انسانانو د تسخيرولو کلک مدّعي ؤ ؛ د طالبانو کلک او په خالي لاس مقاومت ، يو ( خارق العاده ) کار او ژوندی کرامت دی .

دامريکا ديرغل په ړومبيو شپوورځوکې به شايدطالبان په فيزيکي اوظاهري لحاظ کمزوري شوي وي او له ملا محمد عمر مجاهد ، ملا اختر محمد منصور ، ملا عبيدالله ، استاد محمد ياسر ، ملا دادالله (رحمهم الله ) او دامارت نورو يوشميرقهرمانانو څخه يتيمان او ميرات شول ؛ خو په معنوي لحاظ يې د پخوا په نسبت زيات او مثبت پرمختګ کړی دی .

طالبان چې کله په ( ۲۰۰۱م ) کې د صليبي يرغل پر مهال د هيواد له ښارونو او کليو پرشا او د غرونو په لور وخوځېدل ، د وخت حاکمانو او د صليب په ګدۍ راغيلو افغانانو داسې انګېرله چې نور به د تل لپاره د طالب پر نامه سره چليپه وي او د دغه جهان د اختتام تر ورځې به طالب ورک شي ؛ خو داسې ونه شول .

طالبانو په ډېر مهارت سره خپل معنويت داسې وساته چې د هر چا په زړه کې آن تر ننه ژوندي پاته شول . پخوا به د افغانستان اتباعو او ځينو ګاونډيانو طالبان پېژندل ؛ خو اوس يې په پنټاګون ، واشنګټن ، فرانسه ، اسيا او افريقا کې خلک د يوه نه ماتېدونکي او قوي ځواک په توګه پېژني .

طالبان دا مهال د ( ۲۰۰۱م ) سره ډېر توپير لري . هغه وخت طالبان له عصري ټکنالوجۍ او پر مختللي سياست سره نابلد ؤ او ساده خلک به له يوه روسي کلاشينکوف سره ګرځېدل ؛ خو اوس طالبان مختلليو ټانکونو ، پوځي رنجرو ، امريکايي وسلو او وسايلو او بالآخره ډرون الوتکو ته لاسرسی لري او د خپل دښمن په مقابل کې ترې سمه استفاده کوي .

په سياسي لحاظ طالبان دا مهال د سيمې او نړۍ له اکثرو هيوادونو سره ډېر ښه روابط لري او د افغانستان د مسؤلينو په توګه ورسره د هيواد پر هراړخيزو چارو او ښې راتلونکي بحث کوي .

همدا اوس طالبان د هيواد شپېته سلنه ( ٪۶۰ ) خاوره په واک کې لري ، د ملي شتمنو ، کانونو ، ځنګلونو او نورو موادو ساتنه کوي او په ډېرو سيمو کې د بيا رغونې ، سړک او پل جوړونې ، کلينيک او شفاخانې کارونه پيل دي او د ملت د ستونزو په هوارولو کې ملاتړلې ولاړ دي .

اسلامي تاريخ پوهان په دې نظر دي چې د يويشتمې ( ۲۱ ) پېړۍ صليبي جګړه به د نن ورځې خړپړ طالبان ګټي ، صليب او ملګري به يې دلته حتما ناکامه کيږي ، شکست او ماته به خوري او پر افغانستان به يو ځل بيا د مؤمنانو راج او دلته به شرعي حاکميت وي او د عدل حکومت وي.

Srak Magazine

## غـــــزل

اکرام الدین مفتون

دا چې پورې په مزار جنډې رپیږي
دا زما په شهید یار جنډې رپیږي

دا ګودر اوس د پیغلوټو هدیره ده
چې تر څنګ یې په چنار جنډې رپیږي

دا زمونږ د کلي ښه ده جانانه
چې راځې په هره لار جنډې رپیږي

دا د پټو ارادو نتیجه نه ده
دا د مینې په اظهار جنډې رپیږي

امارته تر قیامته به که خدای کړي
ستا په نوم د افتخار جنډې رپیږي

د وحشي لښکر په رنګو کلاګانو
بیا زمونږه بې شمار جنډې رپیږي

دا ښکلا د پسرلي نه ده "مفتونه"
د ملګرو په یادګار جنډې رپیږي

